## د کتاب پېژندنه:

نوم: پرېشانه ولولې
شاعر: خیال محمد کتوازی
چاپ کال: ۱۳۸۳ لمریز
د چاپ شمیر: ۵۰۰ ټوکه
خپروونکی: شاعر
چاپ ځای: میوند خپرندویه ټولنه او مطبعه
کابل: جوار ریاست فارمسی، مقابل مطبعه، معارف
تیلفون: ۲۱۰۳۵۶۹، تیلفونهای همراه: ۰۷۰۲۸٤۹۵٤ و ۰۷۰۲۹۵۲۱٤
و چهارراهی صدارت، کتابخانه، سبا، تیلفون: ۲۲۰۰٤۵۵
تیلفون همراه: ۰۷۹۳۲۰۳٦٦، پست بکس: ۵۲۲۵

## بسم الله الرحمن لر حيم

## يادونه

په دي کتاب کې هغه شعرونه راغلي چې دهغو زيات شمېر د۱۹۹۸ کال دجولای دمياشتې څخه دنومړي کال تر پايه پوري ليکل شري چې ځنې يې زماله پخواني کتاب ,,درناببهير،، څخه هم همدې مجموعې ته راوړل شوي اومغه څه ناڅه ديارلس کاله مخکې له چاپ نه راوتلی وو.

دلمړي کتاب ډېر شعرونه په زندان کې ليکل شوي وواوهلته مې په وروستيوکلونوکې له ملګروڅخه يوکچنی پنسل ترلاسه کړچې دتلاشي او پلټنې په وخت کې په خوله کې پټېدلای شواوله هغه سره مې دتشناب په کاغذ شعرونه ليکل چې زيات شمېر يې دتلاشي اوپلټنې په وخت کې ګيراوله منځه ولاړ ل مګر وروسته مې له ځينو ليکوالانوڅخه د شعرونو پټول زده او بيا مې دباندې را وايستلای شول چې له هغو څخه يو شمېر دکتاب په شکل چاپ اوځنې مې له ځانه سره ساتلې وو.

## دخیال محمد کتوازي لنډه پېژندنه

خیال محمد دعبدالغفار زوی او په ۱۳۲۹ کال کې دپکتیکا دولایت دمرکزدښرنې دملکانو په کلي کې زیږېدلی، لمړنی زده کړې یې دښرنې دعلي بابا په لېسه کې نوري زده کړې یې درحمان بابا او لوړ تحصیلات یې دکابل پوهنتون دادبیاتو دژورنالیزم په څانګه کې سرته رسولي .

له ۱۳۴۹ کال څخه یې دراډیو افغانستان دخپرونو په ډېرو برخوکې کارکړی په ۱۳۵۵ کې دراډیو دخپرونودلوی مدیریت مرستیال او په ۱۳۵۷ کې دراډیو تلوېزیون دوزارت معین او دسولې اوپیوستون دټولنې ریس وو.

خیال محمد کتوازی د۱۳۵۸ کال په پیل کې داطلاعاتواوکلتور وزیر وټاکل شو خودهمدې کال دجدې په شپږمه نېټه دشوروي اتحادپه یرغل کې دهغوئ له خوازنداني اودشورویانوداستعمارپه ټول دوران کې دببرک کارمل دځرخي پله په زندان کې کوټه قلف ساتل شوی وو.

په ۱۳۶۷ کال کې دګرباچف دبیا جوړونې دلارې له مخې دډاکټر نجیب دملي مصالحې په دوران کې دځه ناځه نهه کاله زندان څخه وروسته راخلاص اودیوکال وزګاری وروسته دباندنیو چارو په وزارت کې د وزیر دسلاکار، بیادهمدې وزارت دمعین په توګه په کارلګیا وو، په ۱۳۷۰ کې دسفیرپه توګه لیبیاته ولاړاودیونیم کال دندې داجرا کولووروسته دهالند هیوادته مهاجرشو

خیال محمد کتوازی له ۱۳۴۹ څخه تر ۱۳۵۷ کال پورې دهیواد په ځینو خپرونو په تېره بیا په راډیوکې لیکنې اوخپرنې لرې، ځینې ناخپاره اثارهم لري

په لمړي کتاب کې ډېرې چاپي غلطي ګانې موجودې وې اودصحافت وخت کې هم دومره ګډوډ جوړ شوی ووچې ځنې شعرونه یې هیڅ دلوستلو وړ نه وو نو ځکه مې یوځوخپاره اونا خپاره پخواني شعرونه له لړ لاسوهنې وروسته له دې نوې کتاب سره یوځای کړل، خدای دې وکړي چې دګرانو لوستونکود وخت دسوځلو ارزښت ولري

په درناوی

خیال محمد کتوازی

دا عدامونو په لړکې کله چې یې ببله یو بښتني لاګروېړني ځنځه دوژلو لپاره دا عدام کوټې ته بوتلم نو دا شعر مې ولیکه.
البته په شوروي اتحاد کې د ګرباچوف په راتګ سره زه هم د بېګناهانو په ډله کې له زندان څخه را وایستل شوم




## قرباني

په غبرګو زولنوکې له اختیار سره درځم
ستا غېږې ته مرګیه له ایثار سره درځم
نوبت ته دې ولاړیمه دنیل حریصه روده
لږ صبر راته وکړه له سینګار سره درځم
زما دزړه له کومې دمنصور راواته وایه
مزارته دې په غاړه کې له دار سره درځم

دحق اداکول خوقرباني دځواني غواړي

ارمـانـه صـدقـې تـه لـه مزارسره درځم

پیرو،دپروانې ته داورونو لوبه څه ده

دمینې ازمـویـښـت تـه لـه انګارسـره درځم

خزان مې په ګلزاردارزوګانوباندې راغی

فـریـاد تــه بـه مـاتـمه لـه بـهارسـره درځم

پیالې مې پورته کړې دوطن دعشق له میو

دسـرپـه پـیمـانـه کې لـه خـمارسره درځم

ستاتوره اوقلم مې مشالونه دسفردي

دربـارتـه دې خـوشـالـه لـه ټینګارسره درځم

،،کامران دې وي وطن اوککرۍ دې زماندر،،

دننګ دبـېړۍ نـوحـه لـه تـلـوارسـره درځم

دزړه دوینورنګ مې دسینې ټپونه سپړي

یـوګل دپـسرلي یم له پـرهـارسره درځم

د،،خیال،،په تصورکې دوطن دالهام ناوې

سلام ته دې دعشق له افتخارسره درځم

دڅرخي پله زندان ـ۱۳۶۴

دپیرمحمد کاروان دښکلي غزل له قافیې سره

## ولاړ

غورځنګ مې دجذباتو له هجرانه سره ولاړ
یوشوق ووځوانیمرګ شوله ارمانه سره ولاړ
لاپاڼې دغوټۍ په خوله کې نه وې موسکۍ شوې
ګلاب پـه پسرلي کې له خزانه سره ولاړ
یوخوب دښاپېرو ووپه شبنم دسباوون کې
دوړانګودلښکرله ارمغــــانـه سره ولاړ
امیددپیوستون خو په درشل کې بلا وخوړ
دسـترګویـونـظروولـه ګرېوانه سره ولاړ
څپې داسوېلیوپه لېموکې شولې اوښکې
سیلاب دمـرغـلرولـه بـارانه سره ولاړ

مینې په سوداکې مې یوزړه له واکه ووت
ښوی مخې سوداگرته له نقصانه سره ولاړ
تشویش مې دغمیزې په شروع کې راته ووېل
بیرغ دآزادۍ مـولـه نـښانـه سـره ولاړ
په توروزولنوکې یې دښمن ته اېلولم
تصمیم مې دپـولادوله افغانـه سره ولاړ
غدې دغلیمانوپه ښارونو چپاو راووړ
کلتورمـودنیکونـوله تـالانـه سره ولاړ
هوس دعاشقي یې شـوتحفـه دیربکیو
،،دخیال،، دزړه مرغه وولـه توپانـه سره ولاړ

روتردام ـ ۱۹۹۸

## ولګېده

ناڅاپه مې قدم په يوګودر ولګېده
دښکلې يارپه سترګومې نظرولګېده
دهجردتيارودسباوون په انتظارکې
دعشق په پلوشوکې مې سهرولګېده
پاچادپاچهانويم دميني په نړۍ کې
چې تاج دعاشقۍ زماپه سرولګېده
هماغه تېره غشی چې يې مورته راګوزارکړ
صيادورباندې خپله په ځيګرولګېده

له زړه څخه يې پورته فوارې شولې دڅړيکو
نښـــــان دپښتانـه ووبرابـرولګېده
مريديې لا تراوسه ښکلوي دلاس يرغوې
زاهد خو له ساقي سره بهر ولګېده
جوهردمحبت يې پلوشه دترورمی شوه
يوسف که په کوهي کې هم ژورولګېده
دجبرپه بهيرکې داړيکومهارتېينګ شو
پښتـــون په تفـاهـم کې لروبـرولګېده
چې يوسلام مې واچاوودعمرپه اوږدوکې
،،هغه هم په هندوغوندې کافـرولګېده،،
په سترګويې چې وليدله تېښته دپرديو
د،،خيال،،پـه بـدمرغـيوکې اخترولګېده

## هیـــــله

دمخ ډېوه دې بله کړه تیاروته چې راځي
دژوندپه تروږمۍ کې مې لیدوته چې راځې
مشال دنیموشپوشه داشنادتندي خاله
دعشق په رنګینوکې لګېدوته چې راځې
دژهرووبرخه بس ده نوره موږته په بل وېښ کې
ساقیه! پام دې ونیسه پیالوتـه چې راځې
دزړه دوینورنګ خومې دتادښکلا یادشي
رېدیه په دامان کې غوړېدوتـه چې راځې

چې ځان مې پې ستي شي نوزمادميني اوره
لمبې درســره راوړه بلېدوتــه چې راځې
چلېږه دژوندون دسبا باده را چلېږه
ګلونه مړاوي شوي دي غونچوته چې راځې
په دغه سمندرکې خو پياوړي نهنګان دي
پرديه لامبـــــوزنه توپانــو ته چې راځـــې
په ساندوکې کمپوز دی دسلګيو غږوه يې
مطربه په ناورين کې فريادوتــــــه چې راځې
خماردميني راوړه لږ تسل دخواشينی ته
جانانـه په خاطر کې مې اسروتـه چې راځې
هوس دخوشالی مې لا فارغ له غمه نه دی
زمـا دزړه مـلهمه ښکلېـدوتـه چې راځې
ګوزار ته دې نښان دغليمانو ککری شه
د،،خيال،،دموټې توري چلېدوتـه چې راځې

## بدلـــــون

یوجام راته جانانه دجنون راواړوه
دصبرپه چوپتیاکې مې پاڅون راواړوه
دعشق دسمندر دقسمتونوجالوانه
دبرخې په توپان کې مې بدلون راواړوه
دهجردتورتم دسپېده چاودپه سرانجام کې
سپین مخ لکه دلمردسبـــاوون راواړوه
دبنګـوپیمـانه راکـړه دسترګـوله خماره
یو،اورمې په ګوګل کې دلړمون راواړوه
زمادسـوې زړه دفـریادونوسرطبیبه
درمل مې درنـځـونـودبـېلـتون راواړوه
چې لاره ترمنزله یې په لروبرکې یوه شي
دې ورکوپښتنوتـه پیوستون راواړوه
دژوندکـرلـی بڼ دی په سېلیوکې بهاره
د،،خیال،،دهیلوګل پکې زرغون راواړوه

# ناځـــــي

ستادسروسترګوخمارته په پیالوکې شراب ناځي
دګـوګل دنني زړه مې پــه لـمبوکې کباب نـاځي
مطرب سرې سترګې راغلی دعدم سرې ثناته
شابازساندې ورتـه راوړې پـه سلګوکې ربـاب ناځي
چاته وینې مستي ورکړې څوك دمینې لېوني شي
ګل پـه څانګه کې نڅېـږي په اوبـوکې حباب نـاځي
جنګ په غرونوکې غالب شوغلیم تېښته وکړه شاته
برې خاندې په میدان کې پـه غرمـوکې سراب نـاځي
ویرپـه کلې کې دېره شو ښـــارداورپه انــګارسوځي
شیخ دتخت مینې مست کړی په بنګلوکې جناب ناځي
کوځې ورانــې کړې ببروپـه ریا کې وینې ژاړي
شـفا رنځ ورســـره راووړپـه اســروکې خـوناب ناځي
په برېتوکې دې سپین خلي،،خیاله،،وخت را زېږولي
عـشق دعــمـرغلام ندی پــه الفت کې شبــاب نـاځي

نیدرلاند ـ ۱۹۹۳

## بېلــــتون

چې مې تېرکړه يوڅوکاله په بېلتون کې
لاهغه لمبې مې گرزي په لړمون کې
لاتراوسه زما عـــزم فـرهـادي دی
سرمې ايښی دی دمينې په ترون کې
چې يې قول درته درکړ نو ولاړدی
هسې پت دوفا شته دی په پښتون کې
که مې سرپه عشق کې ځي پروايې نشته
داخـودود ،دی دسرتــېروپه قانـون کې
داشنا دسپينې خولې هسې دسـتوردی
چې غوړېــږي لکه گل په سباوون کې
په نڅانڅـادمشکو څـپې راغلـې
چې لگياشـولـې دځنو په سـمون کې
له خوښۍ مې زړه په ټپ مخې راواوړي
ستادزلـفـودڅــپوپــه اوښــتون کې
که د„خيال، ،دعشق په ميوارمان وخوت
بيا دې وگــرزي بېسده پـه جنون کې

کابل خيرخانه

# بغــــــــاوت

بې غوټيوپسرلی شودگلونوبهارچېرې
له سـېليوتـپوس وکړه دبلبلو چغـارچېرې
نوردسردباج تړون ورسره نه منواجلـه
موږلښکردبغاوت يـودا ،اووسری ښامارچېرې
بنديوان دجبل ته وايه چې دميني لېونيو
خپل سرونه درتـه راوړل راتـه وښيه دارچېرې
دخلوت له تروږمی نه درناپـــه تمـــه وزو
دهجران پـه تـوروشپوکې دسرتېروکرار چېرې
بې جلبه كاروانـونه لټوي ورك زبـاتـونه
خپل جرس اوڅـاروان غـواړي داړيكومـهارچېرې
خياله سروريت شوی ښه دی نه تيټ شوی دبل پښوته
چې لمبه لكه پتنگ شي دسكروتوانگار چېرې

دځرخي زندان ۱۳۶۴

# سمباله

په زېوردکېمېنې شوله سمباله
توري سترګي يې راواړولې ماله
دزړګي بلبل مې غورزي په کوګل کې
چې راګوري نازنينه زماخواله
غوړې څنې يې په سپينه خوله راپرېوزي
دعاشق داسوېليوله شماله
دسپوږمۍ په رڼا شپول دحيا راشي
چې راوزي يې دمخ دېوه له شاله
سترګکونه يې وعدې راسره کاندي
چې دمينې پيوستون به وي سباله
,,دمراد مېوه په صبرکې پخېږي،،
مزل اوږد دی تلوسه مکوه,,خياله،،
روتردام

## داگز دغه میدان

تندی دې ښکلوم له کریشموسره دې نه یم
افسوس دی چې دژوندله رنگینوسره دې نه یم
په پاڼه دگلاب باندې محل مې پاچهي ده
شبنم یمــه دلــمر له پلــوشــو سره دې نه یــم
دمینې پیمانه راکړه دسپینې خولې له جامه
ساقــیه ! دشــرابــو له پــیالــو سره دې نه یم
دحسن پلوشوته دې تیاره شول مشالونه
دمــخ رڼــا دې ښــه ده له ډیــوو سره دې نه یم

له ورايه درته گورمه دسترگوله کونجونو
وعدې ته به هم درشم له پلموسره دې نه یم
مین دربانديې یمه سرکوزي کولای نشم
خپل سردرته ببنمه له سجدوسره دې نه یم
باور په الاهي لرم دزړه له صداقته
دځان په تظاهرکې له تسپو سره دې نه یم
توپان دشواخون مې دوبوي ببړی دهیلو
سلگیوته مې غواړه له مېلو سره دې نه یم
,,داگز دغه میدان، ،اودغه واك هغه زندان
پخپله اراده ځم له پردوسره دې نه یم
د,,خیال، ،مینه توده ده خو په زغرده درته وایم
الفت که مجازي وي له وعدوسره دې نه یم
روتردام ـ ۱ ،۲، ۱۹۹۹

## څنځـــــیرونه

ستاچې په لیموکې خمارونه مستول شي
ماته په گوګل کې انګارونه بلول شي
مینه خوداوښکوتویول نه دي یوازې
برخــه دمینو پــه اورونــو کډول شي
مورته داسمان د بارانونو په بدل کې
سر پـه سر له پاسه راکتهونه اورول شي
سرمې دی په لاس کې دوطن دمینې فخر
کار،که په دې لارکې دسرونوجارول شي
,,خیال،،ته په زندان کې داوبواجازه نشته
ستاپه میخانه کې خوجامونه تشول شي
دځرخي زندان

## سلا

موږبه سل ځله په خپل منځ کې سلا کړو
چې د سولې په ډېره سيمه رڼا کړو
اوس د جنګ په سنګرونوکې ولاړ يو
چې دښمن له خپل وطن څخه په شا کړو

دځرخي زندان

# را ووتـــــــه

مسته ښاپېرۍ له غالمغال سره راووته
بيا دګلو لښتــــه له وبال ســـــره راووته
بيادګلابـ ګل غوندې غوړېږي په عطرونوکې
ناځي لکه څانګـه له سمبال سره راووته
بيا به مې دزړه په سرشين داغ دغم راوکاږي
اوس چې په تندي بانـدې له خال سره راووته
مړاوې غوټۍ هم ورته خنديږي په شنېليوکې
بيا دحسن حـــوره لـه کمـال سره راووته
بيالکه هوسۍ هره خواځارکوي په سترګوکې
غــواړي زمـا مينه چې لـه سوال سره راووته
بيا مې دګودر غاړه چې پـــټه ورتــه ونيـوه
څټه مروره شـــــوه له شال ســـــره راووته
زړه يې پټ پټانۍ ديــارۍ راســره غواړي
بيا پــه ســرومنګولـوله دسمال سره راووته
ماته يې اوس لاس دمحبت را غزولی دی
خوشي غمازوايي چې لـه سيال ســره راووته
چغې اوناري وکړئ دکلي په کوڅــوکې
لرې شئ له مخې چې له,,خيال،،ســره راووتـه
کابل

# مـــــولا

داځنګه توري شپې دي لا غمونه دي مولا
پـه هـره خېلخانه کې فريادونه دي مولا
غوټۍ دپېغلتوب په سپرېدوکې مړاوې شوې
تـرتوروخاورولاندې وربـلونـه دي مـولا
بېړۍ زموږ دهيلو لاهوکېږي په توږان کې
دهرې څپې پای تـه ګردابـــونه دي مولا

دننه خوپه کلي کې اتل ددښمنۍ شي

دباندې يې له بل سره لاسونه دي مولا

زړې غدۍ چې ماتې شوې په بيه دسرونو

دنويو غليمانو ير غلونه دي مولا

سکروټې د اورونو يې کرلې په هرپل کې

منزل ته چې رسيږ وانګارونه دي مولا

ګلونه پاڼې پاڼې رژېلې دي له څانګو

په وينو لمبېدلي بهارونه دي مولا

دلمرله پلوشو سره لوګې دی دباروتو

داځنکه وير لړلي سهارونه دي مولا

چې څمېکې دزګروي يې ترغزله رارسيږي

د ,,خيال،، په ارزوګانو ګوزارونه دي مولا

روتردام ـ ۱۹۹۸

# هـــــوس

چې راګیردې کړم دزلفو په ولول کې
اوس مې پرېږده دسپین مخ په ښکلول کې
زمـا واړه هوســـونه سپیلنی شـه
ستادمینې دخـوندونـــو په بـدل کې
که دا سرې سترګې را واړوې په مینه
بیامې ګـــوره دبریـــوپـه درشـل کې
مین زړه دې پـــه وړیا راخـخه یـوړ
نـازنینې دکـاکـــل پــــه اړول کـې
پرهارونه دزړګي مې روغ رمټ شي
ستادسترګودستـونـوپـه درمـل کې
هیڅ دغېچ په فکرنه اوسې پیمخې
چې مې وژنـې دغمونـوپـه غـوبـل کـې
که مې,,خیال،،دخاطرساتې درته وایم
مستوه مې دسروشـونـډوپه خندل کې
خیرخانه مینه ـ ۱۳۶۷،۹،۲۴

# چـــــور

بېلتون په سرومنګلوکې جانان راڅخه وړي
تقدیـرمې بدل شوی دی ارمان راڅخه وړي
دښکلي ښارکوڅوته دولجوپه نمت راغلل
له دېګ‌اوله کاسې سره دېرد‌ان راڅخه وړي
بدمسته واعظان له میخانې څخه راوزي
تصمیم موراتــه اړوي ایمـان را څخـه وړي
ارشیف ته ننوزي پروني ویاړونه باسي
تاریخ مـو په څټ ګرزوي زمان راڅخه وړي
دجنګ پیغام په لاس کې خودسولې په نوم راغلل
دځمکې قـواله مـوشورویـان راڅـخـه وړي
پګړۍ موله شملې سره دلاندې غورځوي
پښتوخویې سرتوره کړه افغان راڅخه وړي
دښمن دی بې انصافه لایې زړه ندی سوړشوی
هـڼوکې مـودمړیـوپاکستان را څخه وړي
له تېکي توره وباسه له،،خیاله،،سره یو شه
سنګرورته مزبوت کړه چې میدان راڅخه وړي
لیبیا، ترابلیس ـ ۱۹۹۲

## بسیا

ستادشونډو په غوټۍ کې دشرابو پیمانه

چې زما دزړه بلبل یې کړبېخوده مستانه

په کتوکې دې نخرې دي په بڼوکې دې خطرې

سترګکونه دلبرو دې رانه غواړي یارانه

دزړه ګوربت مې ګیرشوستادزلفو په لړلړکې

هر یو ول دې دښکو دوربېنموزولانه

په موسکاکې دې ګلونه په خنداکې دې غونچې

مخ دې رنګ لري دمیوخوله دې مسته میخانه

داځواني دې لابسیا شه بڼ دحسن دې سمسور

ماته مه شې نرۍ لښتې،،خیال،،ته مکړه بهانه

روتردام ـ ۱۹۹۸

# غفلت

چې ډېوه یې لګېدلې ښکلوله
پتنګ ولې خبر نه وو له اجله

دزاهد ږیره یې وایسته له بېخه
چې یې ورکړه دمرید په لاس کې خپله

ساقي خپله واك دمیودوېش ورکړ
اوس ګیله د شراب مسته کوي ځله

دځپوسره لاهوشوه په ګرداب کې
چې ګلمخیه بې ګودره ګډېدله

هرسهارچې راته خاندې په بهارکې
دخزان چپاودې هېردی لاله ګله

دهجران داور له تاوه خبر نه وو
چې په زړه کې،،خیال،، دعشق ډېوه کړه بله

المان ـ ۱۹۹۴

# تــوتکی

چې زماپه شواخون باندې خبرشو
ساندې وایستې گلاب پـه اسوېلي کې
دبلبل له ستوني سوی چغارجگ شو
دغوټې گرېوان شـوڅیري په شنېلي کې

..............

چې زما تر پرهارونو لاندې راغی
دخــــاټــول زړگی دویـنو پیمانه شـو
چې یې واورېده داستان زمادمینې
پتنگ هـــله دډېـوې په سـرلمبه شو

.............

که مې نه بولې مین دعشق دلارې
سـرمې وگـوره ددارسره په څنگ کې
ولولې مې په شعرونوکې مستېږي
فریادونه مې دسپینې تورې شرنگ کې

............

خوچې سپورې سپکې ورم دغمازانو
راترغـاړه دي دعشـق رنګينې لـومي
داشنا يادونه دومره راسره دي
لکه سـيورى چې زه ځم راسـره درومي

. . . . . . . . . . . .

چې يې خيال زمادزړه کوڅې ته راشي
بې صبري مې نوې پېښې ته رابولي
انتظارمې دامېد په غوږ کې وايي
دبـهارتـوتکي دورې دورې شـوري

دڅرخي زندان ـ ۳، ۱۲، ۱۳۶۴

# وطــــن

که له تایمه وطنه اوس دبانــــدې
اوردمینې مې دې سوځي لاندې باندې
چې حاجت دقرباني راشي هیواده
زماسردې صدقــه شي ستا په ورانــدې
دپـردیـو پـه ماهیو بې ورنکــړم
ستاددښتو خړې تـرخې وچې سپانــدې
دچنګېزدجنګ لښکروکړې نه وې
چې غلیم یې اوس دتـاپـه بـچوکاندې
خدای به راولي ددوئ دزوال دور
دښمنان دې چې همېش په ویرکې خاندي
ګلبڼونه به یې هېرې نه کړي ,,خیاله،،
دبلــبلــوله غـمیزې ســره ســانــدې
هالند ۱۹۹۸

## گیـــــــلې

هسې چې دا شوخې سترګې ماته غړوې
یـاره پــه ټـپـونــو راتــه مالګې دوړوې
څرنګه ویشتل کوي نښترې دښودې
ژنـې لکـه وړکـې پــه کــوکـارو ژړوې
زړه مې دې را وتوړه دحسن په نوکارو
نـوردې پـه زړه څـه دي چې اوبـه راخړوې

بیا مې په خوب ولیدل لټکې منګوران
ځکه اوس له زلفونــه دامـونه جوړوې
زه دعشق په لارکې ځنځیرونه پرېکوم
ته مې دوهمــونـوپــه اومړي تارتـړې
کاښې مخ ته ولې لاس دې ونیسې ترشا
پېټې دګناه دې خپــل پــه مــا را،اړوې
کله چې دې سترګې مرورې شي له ما
سر پــه دنــیاګۍ مې پــه اورونــو کړوې
زه خوله وطن سره جذبې لرم په زړه کې
تــه مــې پــه تــرټلــو ولـولې را سړوې
سرې منګولې ګرزې لکه زرکه په ګډا
خال چې په تندي د,,خیال،،لـه وینوجوړوې
دڅرخي زندان ـ ۴۱،۱۱،۱۳۶۴

# راووت

بلبل چې په سلګیوکې له غم سره راووت
خاټول ورته داوښکوله شبنم سره راووت
طبیب زموږرنځونه غزوي دناسورټک ته
ټپونوته دمالګې له ملهم سره راووت
رهبردځوکلونود توبو په یادولو
له روبل، له ډالراوله درهم سره راووت
سرتاج دپیغورونو یې چې فخردګنا شو
په تورو کجاوو کې له ماتم سره راووت
لاسونه یې سره کړي دي زموږدزړه په وینو
دښمن ته په تسلیم کې له قسم سره راووت
په,,خیال،،باندې ټاپه دکفر هله لګېدلې
میدان ته چې له تورې اوقلم سره راووت
دخرخي زندان

# لاسونه راکوه

یا کېنه په حجاب کې ځوابونه راکوه
یاراشه میخانې ته گیلاسونه راکوه
دسترگوله مستیودې زمادزړه تسل ته
جانانه په کتوکې خمارونه راکوه
یاماتې کړه توبې له پرهېزونوڅخه بېرته
دغېږې په وبال کې ثوابونه راکوه
یا بیا یې درنه یوورمه توپان دبدمرغیو
گودرته را اوچته شه لاسونه راکوه
یو ستوری دسبا شه په اسمان زمادهیلو
دمینې په رڼا کې سترگکونه راکوه
یا خلاص کړه له قفس څخه بلبل دآزادۍ مې
یا بیاپه زولنو کې عذابونه راکوه
یامه را ځلوه راته لمبې دښکلې مخ دې
یاسم دې په وصال کې انگارونه راکوه
د,,خیال،،دزړه بلبل چې په ټوپونو ورته راشي
دشونډو له موسکاڅخه گولونه راکوه

هالند ـ ۱۲،۲،۱۹۹۹

# ميداني مينه

که مې کېناستې په خواکې څنګ په څنګ
بیا دې شــمه ستا پــه مینه کې ملنګ
چې په شونډوکې دې شته دی کوم خمار
نــه شــراب هسې مستي لري نــه بنــګ
اننګوتــه دې چې ګــورمــه ګلمخې
راپــــه زړه شـــي دبـهــــار دګلـورنګ
چې یې زه په بــویېدوسره مستېږم
ستا دزلفــو خــوشبویي ده که لونګ ؟
زیږ زبېښلی لکه پاڼه دخــزان شــم
چې په مړوسترګومې ګورې درنګ په درنګ
زولنې مې دزنــدان فکــر تــه راشي
چې دې واورمـــــه دســروبنګړیــوشــرنګ
په زړګي مې دغم تورې لمبې راشي
چې وربل دې شي پـــه سپینه خـوله راړنګ
که زما ینه سره شي ستا پـــه مینه
بیا دې هـــله شـــم الــوی لـکـــه پـتـنـګ
زما مینه میداني ده خوستاخوبنه
چې له ,,خیاله،، سره سوله کړې که جنګ
کابل ـ ۱۳۶۷،۳،۳۲

## رڼـــا

مه برېښنا شه په يو پړك كې

مه توپان شه په ناورين كې

مــه يــو تنــدر هيبــتي شــه

مه هجــوم شه پــه كمين كې

يــوه رڼــا شــه جــاويــدانــه

لكــه لــمر پــه پلــوشــو كې

يــوكــاروان دژونــد دهــڅــو

ســــمندر شــه پــه څپــو كې

نيدرلاند

# درشـــل

نجلی خوله حیاسره افغانه وه راتله
دخپلې ځوانی حسن ته حیرانه وه راتـله

بدری دزمانې وه دادزړوگلوڅانگه
زمادزړه په هیلـوکې سلطانـه وه راتله

وعدې یې کلبه کلبه په پلموکې ماتولې
دمینې په کـولـوکـې نـادانــه وه راتــله

درشل دپیوستون وومروره شوه له مانه
دهـجر په تـورتم کې سرگردانه وه راتله

تصمیم دیارانې یې بیـا له سره نوی کړی
لـه تېروبـهانـوځـخه پښېمانه وه راتـله

دماین په سر وختـه دلارې په اوږدوکې
دوینوپـه څـپوکې ورانـه ورانه وه راتـــله

تېپونه دبدن یې پتـول پخپـل پړونې
د,,خـیـال،،دکلې خـواته راروانـه وه رانـــله

## غـــــج

زاهدخوبه خبروي چې پاڅون ورته راځي

دخـلکوپـه غضب کې پیوستون ورته راځي

جامې ددورنګي يې اوس له تنه څخه باسي

پـه عقـل دسرتېـروکې بدلـونِ ورتـه راځي

توپان را پارېدلی دی دغـج داخستلو

سرونـه يې پـه لاس کې دي جنون ورتـه راځي

,,اوبه کله په ډانګ باندې بېلېږي،، په درياب کې

قومونه به هم يـوشي چې پښتون ورته راځي

وطن بـه موآزاد شي دپـرديـوله منګولو

د,,خيال،،دعـا قبوله شـوه سمون ورته راځي

# پیـــغام

یوزیری په ماوشوچې جانان به راشي بیا
دمینې له توښې سره خندان به راشي بیا
پیـغام رارسېـدلی دمـزل لــه مسافــرو
دښکلې معشوقې سره کاروان به راشي بیا
موسم دعاشقی به مې له سره پسرلی شي
یـوګل دامېـدونــوارمـغان بـه راشي بیا
دابلنده ډېـوه زمادمینې چې لګیږي
دیـاردپیــوستون سره زمـان به راشي بیا
پایان دانتظاربه شي دلارې دڅارلو
دژوند په هوسونوکې تـوپـان بـه راشي بیا
نغمې دخوشالیو به په کلې کې غږیږي
له,,خیال،،سره دمینې امتحـان به راشي بیا

# خواږه ترخه

چې ورته گورم کاته دیارکا
چې ورنږدې شم رانه انکارکا
شونډې یې خاندي بانه یې جنگ کړي
په محبت کې خوی داغیارکا
چې سوال ترې وکړم دخوږې مینې
سترگې یې سرې شي اور انتشارکا
گلونه وبشي چې په موسکا شي
ستوري شرمیږي چې ځان سینگارکا
خال دتندي یې چې شین غمی شي
دمینې داغ مې رنگین شعارکا
په مخ یې زلفې چې راخورېږي
دزړه شیشه مې راته غبارکا
غشي بانه یې دتوروسترگو
دعاشقانو دزړونوښکارکا
هغه چې زه کړم رقیب یې هم کړي
خپله پرې ویاړي ماته یې عارکا
,,خیال،،ته راپېش کړه دمینې جام دې
سرې یې بېخوده زړ یې خمارکا

روتردام

# تلـــوسه

شوق مې پارېدلی دی دمینې سېرولو ته
زړه مې پتنګ شوی په لمبوکې کېرولوته
ګوره دساقي په دغه وچه پیاله څه وکړم
زه چې تږی ناست یم دجامـونوتشولوته
فکرمې په سرکې راته نوې غوغا جوړه کړه
عقل یاغي شـــوی دی دغـرونـونړولوتـه
بېړه لمسوي سترې بلـــواتـه زمـاصبر
مټ مې افغان شوی دی دتـوروچـلولـوتـه
وینه سېلابي شوه په رګونوکې څپې وهي
عـزم لـېونـی شـودمـرچـلـومـاتـولـه ته
موږخوترپېروونودمېړانې کربښې وایستې
بیـامـوزمـانـه څـــله رابولـي ازمویلوته
خدای به پسرلی کړي په دې وچووچودښتو
سترګي انتـظاردي دګلـونـوغـــوړولـوتـه
سرې غوټۍ دې وګوري دڅانګودسرونو
,,خیال،، که تلوسه لري دنوي ژوند لیدلوته
دځرخي پله زندان - ۱۳۶۴

## راځـــــه

محفل درنګينوته له جــــلووسره راځه
دحسن تظاهرتــه له لمـبوسـره راځه
شراب چې ناروادي نوزما ترېږ ارمان ته
دسترګوپـه حياکې له اوبـوسره راځه
لنګرمې ستادحسن دساحل په غاړه ونيو
دعشق په سمندرکې له لامبوسره راځه

تسلیم خوله ازله پښتنومنلی ندی

زندان ته مې که وړې له زولنوسره راځه

ماښی دتصورته مې راستون شولې قاصده

یـواځې چې رانشې لـه درخوسره راځـه

دستورواوسپوږمی مقابلې ته چې راوزې

دیـارسپینه تـندیـه له خالـوسـره راځـه

دمینې ازمویښت دی دبېلتون په تروږمی کې

زمـادزړه پـتـنگه لـه ډیــووســره راځـه

چې تېرې خاطرې دگودرونوراپه یادکړي

دیدن ته مې جانانـه له بنگړوسـره راځـه

پخپله گناه وکړه نودځان ژغورون لپاره

جزا ته خودې زه یم له ټـاپـوسـره راځـه

تکل دې بختورشه دجنون دجام له میو

دجگوغـرونو،،خیاله،،له توبـوسره راځـه

روتردام ـ ۱۹۹۸

## زاهدته

شیخه ستالپاره ښه وولـه سجدوسره محراب
فیصلې بـه دې کـولې دوېـال اودثـواب
په جنت کې دې دحورواوغلمانوهیله ښه وه
په محشرکې دې سوداد ګناهونودحساب
توبې دې په تسپوکې دجمات دګوټ ښکلا وې
ګنه ږیره پـه خلوت کې دنفـلونواوکتاب
خپل مذهب دې ځنګه پرېښوددګدی دشوق په تمه
پـه دنیا کې دې راولـړل اورونـه دعذاب
که په ورځ داخیرت کې له پوښتنوسره مخ شې
ددنیا له هوسونو به دې څه وایې ځواب
لیبیا ـ طرابلس ۱۹۹۲

# مرغـــلرې

چې هرگام دتادکلې په لوړږدم
مـشالـونـه دې دمينې لگـــوم
لارې نشـتـه دبېلتون په تروږمۍ کې
که دمخ ډېوه دې بله شي درځم
دخاطرغوټۍ دې مړاوې مه شه یاره
چې دا لارې گودرونه دې ځارم
بې میلې دې په زړه ږدي راته ټپونه
خواخوږي دې پرهارونوته ملهم
په لیکلوکې به ستړی ستومان نشي
سـتادحسن پـه صفت زما قلم
,,خیال،،ته برېښي مرغلرې دخولودې
چې ځلېږي په گلپاڼوکې شبنم
هالند ـ ۱۹۹۸

# پېغله

سره غوټۍ دګلوپه بهارکې غوړېده
پېغله پښتنه وه چې لـه ورایـه ځلېده
لاره یې خاړله ترګلبڼه پـه لېمو
زرکـه غـرنۍ وه ګـرزېـدوتـه سـمېده
کله چې روانه شوه په نازوکریشمو
چـته پـه مـستیوکې لـه خیاله ړنګـېده
نوك به یې نیولی وو دپل په اخیستو
مـسته غـرځنۍ له خپله سیورې ترهـېده

غاړې دګودرته چې راورسېده دا
سپینه مرغاوۍ شوه په اوبوکې لمبېده
اړخ په اړخ به اوښتله یوه په بله خوا
کله به دکب په شانې لاندې ښوېده
وروسته یې غبږ واورېده دپاڼودنڅا
شرم لېونۍ کړه په څنګو پټېده
فکرېې کاووچې ګواکې ولیدله چا
کته ګرندۍ شوه په اوبوکې ډوبېده
غلې شوه دځنو په صدف کې مرغلره
رنګ یې ووالوتی نجلۍ ډېره شرمېده
کله چې بیاپوه شوله چې نشته دلته څوك
پاڅېده ورېښمینه له اوبوڅخه لنده
پټه شوه په ګلوکې داپرخه دګهیځ
هلته دغلیم په یو راکټ ولګېده
سره غمي یې مات شول په بدن کې دټپونو
ونه وه چې شوله په ځمکه ولوېده
وینې بهېدلې دسپوږمۍ له پرهرونو
سره ګېډۍ دګلو په چمن کې رغړېده
چیغې یې په خوله کې شوې له وېرې څخه وچې
،،خیال،،چې ورته راغی په کټ کټ وژړېده

## څلوریځه

دمرگ استازي راغلل خوځېدی نه شمه چېرې
بندي دپنجرویمه پیرې رانه چاپېرې
پیمان راځه اخلي دوطن دخرڅولو
همت له مانه وژني ارادې راڅخه پېرې

دڅرخي زندان ۱۳۶۴

## ملهم

که ونه لیکي ښکلادښه صنم
دړې وړې شه زمادلاس قلم
پاڼې پاڼې مې دزړه ګلاب غوړیږي
چې صفت دتوروسترګویې لیکم
هسې چارې یې دمخ لمبو راوکړې
لکه لمرچې راخوریږي په شبنم
که زما دمینې زړې زرغونیږي
نودې خاوروڵاندې شم لکه غنم
پرهرونه دزړګي مې روغ رمټ شي
ستادشونډودخندلو په ملهم
لکه ترهنده هوسی راڅخه تښتي
چیرې نشولې د،،خیال،،غوټې ته تم

کابل ۱۳۶۸

# مااوتا

ماخو،جادودزور او زرمات کړ
تا مي دبل په توره سرمات کړ
ماوي بچوته به سنگرې سپارم
تامې دجددلاس خنجرمات کړ
زه خودستوروداندازپه تکل
تامې دلوړپرواز وزرمات کړ
ماتروږمی ته مشالونه کړل
تامې دهيلوروڼ سهرمات کړ
منزل نښان وولا اټکه سره
تامې دژوندروان سفرمات کړ
داباسين نغمه دې وتړله
څلی دوياړدې دخيبرمات ک
د،،خيال،،دعشق داميدونوتړون
تاله رقيب سره بهرمات کړ

روتردام ۶،۷،۱۹۹۸

# دڅنګوزولنې

دغه مین زړه مې دایې بلنده رڼا
دغـه هوسۍ سترګې دازمـادیـارښکلا
دغوپارولي دي درګرده دېلتون
دغـه خـرخشې دغه کړکېچ دغه غوغا
دانوې نخرې دغه نازونه اوملنډې
دغـــه پـــه تـېروبـنووژنـــې داجـزا
دغودڅنګوزولنې رایادولې
دادي ځـــنځیرونـه دغـه متېې دي زمـا
دغسې نادودې اوناخولې دپیمخو
دغـه دي سـرې وینې دغـه دښته کربلا
دابه ګوره هیڅکله بې غچه پاته نشي
دغـه ګنې اوښکې دغـه سـاندې اوژړا
دابه یووخت وکوي کیسې دیرغلونو
دغـه رڼـه ســتورې دغـــه ځـلنده سبا
„خیاله،،وارخطانشې په دغه تروږمۍ کې
مــینه پــه هــرغم کې ده پیاوړې رهنما

دڅرخي پله زندان ۱۳۶۴

# پـــت

چې دژوند هستي مې ولاړه په تهمت کې
سرنـوځـه دی چې اوس درومې پـه الفت کې
دبلـــــبل دچــيغوسـازدمينې سوزدی
دغـــونچې دښـــکلااورپـــه لـطافـت کې
دسکون ناصحان لاس په دعا ناست دي
دسرمـــستوکـاروان ځـي پـه حـرکـت کې
شيخه ښه شوچې يې ستاله مخه جګ کړ
د، ريـاحـجاب دجـنګ پـه عـاقـــبت کې
پاچهي دې،،خياله،،نه وي په پستي کې
دزنـدان تـورې تـيارې دې وي پـه پـت کې

روتردام ۱۹۹۸

## څوک؟

په توره کې زمری دی
اودپوهې په سيالي کې
ګيدړ يې زوررشي
نوپه هره خوايې بيايي
داقوم به وي څوک؟
وطن په نوم ددوئ دی
اختياريې دپرديو
دبل په لاربــــــــونه
يوله بله سره وژني
داکومه جامعه ده؟
په بيه نه خرڅيږي
باړه يې ده ارزانه
لپاره دپــــرديــو
ترڅپلوسروتېږدي
دا کوم ساده اولس دی؟
نه کورلري په ځمکه
نه يې ستوری په اسمان
چې وچه ګوله تېره کړي
نـوشکرهـم وبـاسي
داصـبر بـه دچا وي؟

لاسونه یې تنهاکې
دپښتونخلې یې چاودې
دکارحاصل چې واخلي
نودبل کندو یې ځای شي
داعدل به وي چېرې؟
سالاردټول ملت وي
خوږبه یې زده نه وي
همکاریې ترجمان شي
خپل اولس ته په ویناکې
دابرخه به دچاوي؟
که شل کسه همږبي
پخپلوکې غږېږي
چې یوبېگانه راشي
واړه ژبه دهغه کا
داڅوك دي په سخا کې؟
„ په یوشي اتفاق دی
چې نه به کړي یووالی،،
هرڅوك په ځان مین دی
هسې لویه ځانځانی ده
داچېرې گډوډي ده؟

## مکوه پوښتنه

هغه سترګې مې لېدلې دیّ چې مکوه پوښتنه
نن یې هسې تورې کړې دي چې مکوه پوښتنه

زما زړه چې شوتنهاکې دتاوده ګوګل دننې
پېمانې مې پورته کړې دي چې مکوه پوښتنه

چې داورځپوته ولوېدمه ستادعشق له زوره
سرې لمبې دې بلې کړې دي چې مکوه پوښتنه

ستادزلفوپه ولول کې چې راګیرشومه جانانه
زولنې مې شرنګولې دي چې مکوه پوښتنه

ماچې سردخپل وطن په مینه ونیوه په لاس کې
هومره ستونزې مې ګاللې دي چې مکوه پوښتنه

چې مې پل وربسې واخیستنه دعزم په رڼا کې
زمانې مې خوځولې دي چې مکوه پوښتنه

،،خیال،،خبردی په دې ښارکې دپردې مطرب رباب ته
داسې مستې نخښدلې دي چې مکوه پوښتنه

کابل ۱۳۶۴

## اړیــــــکې

ترڅوخو چې دحسن وي له ګل سره اړیکي
لري بــه فــریادونــه له بلــبل ســره اړیکي
ښکلا لري له عشق سره په خوندکې ګډې پولې
تصویــردپیوستون یې له غزل سره اړیکي
دحسن ګل اندامه چې حاضره پکې نه وي
دمینې بــه نوڅه وي له محفل سره اړیکي
نسبت دقربانۍ چې وي په مینه اوښکلاکې
د ،اوراودپتنګ وي لــه اجــل سره اړیکي
دیارپه سپینه خوله باندې چې څنې پیچ وتاب شي
دســترګــودکتو وي له ولــول سره اړیکي
انځوردننداري یې جوړوي دزړه تېپونه
اشنادتندي خال دې له وربــل سره اړیکي
دتورې شپې بلاوي ویښوي راته په خوبه
دتــوروتــوروســترګـولــه کجل سره اړیکي
یادونه دناخوالوسپخوي زاړه تېپونه
د ,,خیال، ،په تصورکې له کابل ســره اړیکې

هالند

# خـــــار

يوسېلاب که څاڅکي څاڅکي شي ناياب شي
خوکه څاڅکي سره يوځاى شي درياب شي
دريابـونه پـه خـپوکې تـوپـاني شي
تـوپـانـونـه سـمندر شي انقـلاب شي
په هرپل به يې څارې دخوځښت لارې
انقلاب چې بې گـودره شي خـراب شـي
هرگرداب يې زمولوي دقوت زېرمې
په مـوجـونوکې يې زړه لکـه حـباب شي
گـوزارونـه دپرديوچې پـې راشي
دحـبـاب تـنـاكـه وچـوي خـناب شـي
په خناب کې چې رهبر دبل غلام شي
نـوسـاقي شي اوجامـونه شي شراب شي
دشـرابـولـه مسـتيوسـره,,خياله،،
دافـغان بچـى اورونـوتـه كـباب شـي

هالند ۱۸،۸،۱۹۹۸

## پاخه پاخه

کړم چې هوسونه دجانان پاخه پاخه
خـــورم به گـــوزارونـــه دزمـــان پاخه پاخه
کرښې دبریوکه ازغوکې سپخېدلې
درومې په دې لاره کې مستان پاخه پاخه
سیخ به شي دښمن دخپلې ماتې په بهیرکې
بیاکه مورچل یوکاندي ځوانان پاخه پاخه
نوم لري غیرت لري دعلم برخه نه لري
شنه زمـري دتـــوروافـــغانان پاخه پاخه
مینه مستانه چې افسانه دزمانې شوه
مـــوړلاځـــه اومـــه ووغـــمازان پاخه پاخه
مادیارپه مینه کې گاللي سرپه سردي
ډېـــرعـــــمرغـــــمونه دزندان پاخه پاخه
سرمې شوناځـاپه دنظـمونـوپه پېیلو
,,خیاله، ،اوس نـوگوره شاعران پاخه پاخه

دځرخي زندان ۱۳، ۱۰، ۱۳۶۴

## چـــوف

څوک یې تېرایستل په چوف اوپه دمونو
څوک یې ښکېل کړل دپردیوپه دامونو
زړه یې سوړنشوپه دې غریبوخلکو
اوس یې وژني پـــه مېزایـلواوبمونو

## دوطن مینه

ځکه هرځومره یوهوښیاراوګلالی شم
دوطن په نـامــه مــست اولېـونی شــم

هرساقئ مې دپیالې ملګری بولي
خــوچې وخـت دپیماني شي نـوپـردی شم

دامیدکچکول په غاړه وصال غواړم
ځکه هــرڅــومــره دپیـمخوخـندنـی شــم

په ما مینه دیاردومره اغېزه کړي
چې دمـخ ښــکلايې ووینـم ګـونګی شم

هره پېښه مې چې لارې ته یوځنډشي
زه دعــشق ډېــوه کـړم بله بـریالی شــم

دا زمــوږ دلېونـوېـری چې ګورم
شین چــمن شم غـوړېـدلی پسرلی شـم

سریایلـنه دوطن لپاره ویـاړدی
،،خیاله،،زه دې په دې لاره کې لوګی شـم

زندان

## وږمـــــې

جانانه چې حجاب دې له وربله څخه ولاړ

زړګی مې ستاپه عشق کې له کوګله څخه ولاړ

مشال ووراجوت شوانتظار زما دشوق ته

دسترګوپـه یـو، رپ کې له محفله څخه ولاړ

وږمې یې لالهانده ګرزېدلې په څپوکې

عـطرونـه دې دزلفـولـه ولـوله څـخـه ولاړ

دزړه داسروصبرمې دتا دمينې اورته
دعشق په امتحان کې له اوله څخه ولاړ
ارمان دنيکمرغيو مې له پېښوڅخه جارشو
دلوړوغروتوتي وو له منگوله څخه ولاړ
سېلۍ ورباندې راغلې دشمال دساړه منې
بورا خوراضي نه ووچې له گلنه څخه ولاړ
چپاوېې په غوټيوکې چې وليده په سترگو
يو سوزداسوېليوله بلبله څخه ولاړ
دژوند ،لوبه چې گرمه شوه دهيلوپه غوبنتون کې
دنيمې لارمـلگرى له درشله څخه ولاړ
دپلارکلى يې پرېښود درقيب په تمه ووت
پخپله حرامي وو چې له خپله څخه ولاړ
ترخپلې غرغرې لاندې يې غاړه وه راغلې
نصيب يې زورور وولـه اجـله څخه ولاړ
دې نويو، ږيرورو چې وارونه په ښار وکړل
د,,خيال،،کډه په سرشوه له کابله څخه ولاړ
هالند ۱۹۹۸

# پسرلی

پــه دې شنه زرغون بهارکې ښې رنګینې ننداري شته
دخاتــولو کــاروانــونــه دبلــبلوتــرانې شته
دبریښناووسپین پــړکــونه د وریـځــودرمندونه
مــرغــلرې بــارانــونــه دســیــندونـوسلسلې شــته
دشنېلیوښــــکلاګانې دګلــخانګونــخاګــانې
ښـې سپېځلې ارزوګانې ګــرمې ګرمې ولولې شته
تــوتکی کــړي اتڼونه پاس دزاڼوکتارونه
دمــرغــیوچــغارونــه ښې خــوږې خوږې نغمې شته
ګــودرونــه دمنګیو شــورماشــوریې دبنګړیو
هـــم دپــــښغلواوزلمــیو پټې پټې یارانې شــته
دګلابــوښــه عــطرونــه سرې غوټۍ اوچمنونه
لــه ساقي ســره جامــونه ډکې ډکې پیـمانې شته
مینه شته ده وینه سره ده هوا ښه ده خوافسوس چې
دوطن دشــهیدانــو نــوې نــوې هــدیـرې شـــتــه
په هرکورکې په هرکلي څوك تېږي دي څوك وژلي
پــه چــاجوړدي نــوې څــلي هــرې خواته ویرانې شته
سرې ګولۍ دي،،خیاله،،اوري غلیم ګرزي دورې دورې
لابــهــیږي وینې نــورې دتــوپــونوزلــزلې شــتــه
خیرخانه مینه ۱۳۶۸

# بهـــير

چې دځان برى يې غوښت زموږ په ويركې
اوس يې خپله ماتې ليك شوه په تقديركې
درتبـــې حـــريص تـه وښيه ناصحه
دتـسپوتارونـه غبرگ درومي پـه ميركې
دكـاروان په خـوځـېدوكې وبال راغى
چې غـماز ورسـره مـل شـوپـه بهـيركې
نامرد ،وتـښـتـېده بـيادغلـيم كـورته
خپل ساده لښكريې پرېښودپـه ځنځيركې
كه يې تول كړې له شيطان سره په تله
دحـريـف گناه درنـه ده پـه تقـصيركې
دصراط دتـورې لارې وېـره نـشته
كه ډېوه مـودانصاف وي پـه ضميركـې
قافـله دامـېدونـوپـه اقـدام ځي
مـوانع خـو ورسـره وي پـه مـسيركـې
د,,خيال، ،ژونددغم دپېښويوه لړى ده
چې يې گورې دشـعرونـوپه تصويركـې
هالند، كوفوردين

# مـــــنزل

غږ زمادسولې خو پېروونوته رسېږي
زوږ دســپينوتــوروااســمانــوتــه اوچتېږي
سين داباسين دی دپښتون دهيلوپوله
زړه مې په سينه کې دغه شوق ته هوسېږي
سربه زما ټيټ نشي چنګيز دزمانې ته
سرمې له پاسه که په دار باندې ځـړېږي
بلنده دپوه يمه نه ځايه نه خوځېږم
اورمې کـه دســر پــه ککری بــانـدې بلېږي
پرېږده که دلمرتبی ور وداغلې پوندې
خوښ دي افغانان چې منزلــونــوتـه رسېږي
پام کړه چې په شانه شې دخلکوله سنګره
,,خياله،،که اره دې په مری باندې چلېږي
دځرخي زندان ۱۳۶۵

## حـــريـــص

دزاهدگوزاره نشي په داهسې.واړه جام
ساقي خم ورته را اخله دې حريص ته هرمابنام
ماتـوي تـوبې پـه پټه دگناهـو په کولو
حريـف رورډي دی پـه دواړوپـه حلال اوپه حرام

۱۹۹۰،۶،۱۵

# خــــواله

سترگوته دې گوره چې داڅه راسره کاندي
څنگه گوزارونه دې بــانــه راســره کاندي
شونډې دې سکروټې شي دحسن په انگارکې
اوريې پــه ځـيگركې بلــېده راسره کاندي
زړه ته مې چې راشې، اوردمينې پکې بل کړې
دغسې ناخـوالې دې راتـله راسره کاندي
تېرې خاطرې دېارانې دې چې رايادشي
تــوله ورځ پــه فكركې خواله راسره کاندي
وگوره لېمې دې جادوگرې دي كه څه دي
روغ مې لېونی کړي چې كاته راسره کاندي
ناز او اداگانې دې ملــنډې رانــه غـواړي
لوبې پــه نخـروكې دغـرڅـه راسـره کاندي
څه گيله پــه كـارده لــه پـرديـودښـمنانو
وگـــوره تقـديـره پښتانـه راسره کاندي
هررنگه نادودې چې له ,,خياله،،سره غواړي
خوښ يمه له گرانه څخه ښه راسره کاندي

جرمني فرانكفورت ۱۹۹۸

# پــــــــام !

شاه دزمانې چې را لیږلی له بهــرشي
واك یې دپښــــــتون په كور وېښلی لروبرشي
پېرۍ دكاروان چې دپردوپه گوتوكېوزي
لارېې دبهـــــیردتـباهـی پــه گـړنگ سـرشي
لاس دې دغلیم ترپښولاندې مــه شه یاره
سیال په ازمویښت كې كه شغال وي زوروړشي
مینه چې ډېوه شي دامیدخونه رڼا شي
هـوډ چې افـغانې شي ویـاړېې ځـلی دخیبرشي
،،خیال،،په پنجروكې نه دخرپ شي نه دترپ شي
بازچې په دام كېوزي بې مښوكې بې وزرشي

امستردام ۱۹۹۸،۸،۸

## وطـــــن

څو مې ګرزي ځاځکی وینه په بدن کې
پرې به نه ږدمه غلیم پخپل وطن کې
که دښمن ته مې ورخښت شي په مورچل کې
بیامې مړې ته اور ورکړی په کفن کې

زندان ۱۳۶۴،۱۱،۳

## هـــیله

ساقي تږی یم دمینې اوبوه مې اوبوه مې
ستادسترگوخمارراکړه مستوه مې مســتوه مې
زه د ښېښوڅپوراوړم دخوني گرداب غړی ته
ډوبوي مې دې کړی ته ژغورره مې ژغورره مې
دهوس مرغه مې گرزي بیا مې ښېښوته رابولې
پرې مې نږدې تـلوسـوتـه څنډوه مې څنډوه مې
ستړی زړه مې لږهوساکړه توره شپه مې رارڼاکړه
دوربښمین وربل په تال کې زنگوه مې زنگوه مې
څورولی یم غمونو ستاپه عشق کې تومتونو
خـودحسن پـه درمـلـوروغــوه مې روغـوه مې
چې په مینه کې کباب شم چې یومست خراب خراب شم
سـتادسـروسـترگوانگارته کړوه مې کړوه مې

دځرخي زندان ۲۱،۱۰،۱۳۶۴

# څنګه ؟

سوله دې چې نه غوښتله جنګ دې ولیدڅنګه
پاس په ککرۍ باندې کلنګ دې ولیدڅنګه
ژوندپه وروروليٰ کې خودې نه وه په نمت کې
تـوره چـې راووتـلـه شـرنګ دې ولـیدڅنګه
ډېرې پـاچـهـي دې پـرزولې دې پـه زوره
دلـتـه پـه دې غـرونـوکې ملنګ دې ولیدڅنګه
دغـه ګلالي دې وو په چـوپـه کې لیدلي
اوس چې پاربدلي دي غورځنګ دې ولیدڅنګه
ساپه سادې وخوړل پیاوړې ګوزارونه
بـېـره زمـوږخـرنګه ده درنګ دې ولـیـدڅنګه
باغ دآزادۍ مو چې په وینوخړوب شوی
څانګې یې ګلګونې شولې رنګ دې ولـیدڅنګه
تاسې اوربدلي دخیبردسـرلـوړیـو
شاته اوس په تېښته کې سالنګ دې ولیدڅنګه
بې دارزوګانوخوسمسوروویه دې ښارکې
ستـاسې لـه یـرغـلـه سـره ړنـګ دې ولیدڅنګه
,,خیاله،، چې پیاله دې دهیواد دمینې نوش کړه
وایـه لـه جـنـونـه سـره بـنـګ دې ولـیدڅنګه

دڅرخي پله زندان

# وربــــــــل

چې په مخ باندې يې زلفې راولول شي
دزړګـي پــه سـرمــې اوردمـيـنې بـل شـي
دګناه پېټی به څوك په غاړه واخلي
که دخـوب پـه بېخـودۍ کـې رانـه ښکل شي
دالفت ډېوه يې خاندي په څېره کې
چې يې سـتـرګـې ددروغـــوپـــه کنځل شي
مـابـه نـه تـرټـې دحـسن ګـل انـدامـه
کـه مـې پـام بـې اجـازې پـه تور وربـل شي
دغـوټۍ دسـپـېـدو دوربـه راشي
چې يې،،خيال،،ته ښکلې شونډې په خندل شي

# بـــت

يوگل دپسرلي وم ژيړه پاڼه شوم دمنې
پـه لاس کې مې کېکارې ژوبلوي مې حرمونې
مېچنې په ما گرزوي عطرونه رانه باسې
پـه څـڼوکـې مې نـه ټومبي ددغه کلي نجونې
يوبت دزماني ومه انځوردغره په زړه کې
بـاروتـو رانـه ورانـې افـسانې کړلې لرغـونې
زمـــوږدزاهدانوديـهودوغوندې خوی ده
دژمې پـه يـخنی کـې ړنگوي دخلکوخـونې
کړکېچ دګڼو ړيرومهاجرکړوله وطنه
دبخت پـانـه که واوښتـله بـېرتـه يـوورتـلونې
دعصرله کاروانه,,خياله،،ځکه شولوپاته
دجـهل خـپکـيوټينگ نـيولې يـوتـرسـتونې

روتردام ۲۰۰۱

# کله کله

کله مې له خپله کلي ورځي یاران
کــله یــواتــل یــمه دتـــورودمــیدان
کله خنداراشي په یادونودبــهار
کله مې ناخوالې ژړوي دســوړخزان
کله لاغوټې یم په امیددغوړېدو
غواړم چې ملګری شم دګلوډکاروان

کله مې ګلپاڼې خوروي پستې وزرې
ژوندتــه هــوسېږم هـڅوم دزړه ارمان
کله تازه ګل شـــمه دښکلودوربل
کــله پاڼې پاڼې رژېــدلـی پــه ډېــران
کله مې بیا وتړي دزلفوپه وربښمو
غــواړې ښاپــېرۍ رانــه دمینې امتحان
کــله رڼې اوښکې وڅــوم دیتیمانو
کــله تــوره واخــلم لــړزومــه پــاچهان
کله یومرغه شمه په غرونوباندې ګرزم
کــله مې صیاددخپلوغشوکړي نښان
کله هسك ته وخېږم د ستورونندارہ کړم
کله په هیوادکې خواربندي یم دزندان
کله چې په بریدشم دوطن لپاره،،خیاله،،
تـندریم سـېلاب یمه غـوټه یم دتـوپان

زندان ۱۳۶۴،۱۱،۲۰

## سباوون

ليلاته خبروركړه چې مجنون درته راځي
دتورې شپې په پاى کې سباوون درته راځي
هوکې دبيوستون دې په لاسليك کې درنه غواړي
دمينې وفادارې دپرون درته راځي
دزړوگلوباغ به دې سمسورشي نازنينې
دوصل په درشل کې دې سمون درته راځي
ژوندون خوپه دنياکې يوه تحفه دعاشقي ده
دکرکې له قاصدسره بېلتون درته راځي
چې زړه يې ستادسترگوپه نرگسودى بايللى
لالي ته لارې څاره چې مفتون درته راځي
غوټۍ دبېغلتوب به دې دياردغېږې گل شي
دزلفوپه څپوکې اوښتون درته راځي
دکلي گل اندامې زمازړى په تاباندې
د,,خيال،،سره په مينه کې ترون درته راځي
۱۹۹۹

# مرغلرې

چې رایادکړم دصنم خوږې خبرې
ترمې اوښکې شي دسترګومرغلرې
زړه مې ډوب شي دنېستی په سمندرکې
چې دژوندملګرې وینم لرې لرې
تورې لړې مې په زړه باندې را پرېوزي
چې دیارښنې خوږې شي لرې برې
مات زړګی به ننواتې ورته یوسم
که پخلا شي تورې سترګې مرورې
په الفت کې چې وفاورځخه غواړې
جفاکارې دي دحسن زوروری
،،خیال،، دې نه کوې ګیله له خپله بخته
نازولې په زړه سخت دي تربرې

زندان ۲،۱۱،۱۳۶۴

## تـــجربه

څله به ګیله کوم همته له تقدیره
ښـــه ده چې عــادت شـــومـــه دمـــهوله څنځیره
ژونددحرکت اودسکون مقابله ده
ځـوان دی چې یې لـوری شي له خوځنده بهیره
هره قافله لري مخکښ په خپل سفرکې
مـــوږیـــه ځانـــځانـیوکې روان یـــوېې لـه مـیره
سهوه دانسان دازموینوتجربه ده
چـارې په عمل کې چېرې نـه وي بې تقصیره
لاره به پیدا شي دمنزل په لورې ,,خیاله،،
مټ مې که راخلاص شي دژوندون له اوږده ویره

نېدرلاند

# سترگې

نن مې غلې غلې څارې شرابي سترگې دچا
پاروي مې دزړه مینه شبابي سترگې دچا
په کاتوکې يې جذبې دي په راتلوکې يې حملې
له گوگله زړه راکاږي عقابي سترگې دچا
دسترگوتورول يې ډيروي دځواني بيه
فريبگرې دي که څه دي قلابي سترگې دچا
ځپې دتاثيراتويې چاپېره شوې له مانه
ډوبوي بېړۍ دژوندمې دريابي سترگې دچا
زمازړه يې پېيلی په سيخونودبڼوکې
کړوي يې اوردعشق ته کبابي سترگې دچا
د,,خيال،،دزړه نه باسي خزانې دارزوگانو
له چوراو له تالان سره آبي سترگې دچا

## زگـــــروی

ستا په عشق کې دهجران پېټې درانه دي

تـورې شـپې په ماخـورې دبېلتانه دي

چې له خولې مې هسې سوې کوکې وزي

دعشق څرېکې مې لګيا په لړمانه دي

دهـــوس تـــوتي مـــې لتېه کړي هـــواتـــه

خـــو وزرمـــې داســـرولازولانـــه دي

لازمـــا دژوند پـــــه غـــولې دپـردیـــو

نـــابـــللي چـــپاوونـــه مېلمانـــه دي

لنډوي دســـترانسان دارمـان کرښه

لاد,,خيال،،هـوډونـه هـسې پښتانه دي

دځرخي پله زندان ۸،۱۱،۱۳۶۴

د ښاغلي عارف خزان د ښکلي شعر په اقتفا

## ستړي شوي

فلک خو رحم نکړي تندرونه ستړي شوي

زمــوږ د سـرله پاسـه گـوزارونـه ستړي شوي

دژوند بېړۍ مو راغله دگرداب په څنډه گرزي

موږ ښه يـولا خوځېږ وتـوپانـونـه ستړي شوي

ترخوبه منتظردسباوون دپلوشویو
دهـــجرپـه مابنام کې تورتمونه ستړي شوي

دهرپټي په سرکې يې قفس راته نيولی
په لوموکې موږ،روږدي يودامونـه ستړي شوي

لنگرمـودمحـبس په پنجروکې اچولی
سـتومانه خـوهيڅ نه يوزندانونه ستړي شوي

لاتوغ دآزادۍ موپه سنگرکې ټينگ نيولی
دبـدوگـاونډيـويـرغــلونـه ســتړي شــوي

پيالې په غاړه اړووغمونه موتېرباسو
سـرونـه تاوده نـشول خوجامونه ستړي شوي

زموږ په پسرليوکې سپلۍ دمنې گرزي
غــوغــادبــلبلانــوتــه گلـونـه ســتړي شوي

زې پټه پټه خارم دکلاپه هرکنډوکې
ليلاخــولاولاړه ده بــامـــونــه ســتړي شوي

دزړه مين توتي مې رانه چيغې سورې غواړي
د،،خيال،،داسـوپلـيوفـريادونـه ستړي شوي

روتردام ۱۹۹۸،۷،۲۰

## هــــــــوډ

دامینه دمجنون ده،درېدلای ورته نشي
یاتوره دپښتون ده ټینګېدلای ورته نشي
جنون دعاشقي يې رهنمادپلټون دی
سنګر يې دی نیولی راوتلای ورته نشي
که هوډدقرباني دپرواني درسره نه وي
عشق بلنده ډېوه ده کړېدلای ورته نشي
دزړه له هره ټپه مودوینوفواره ځي
شعاردازادی دی تم کېدلای ورته نشي
د,,خیال,,دزړه غوټي چي پرهرونه درته سپړي
داوښکوله باران سره کتلای ورته نشي

۱۹۹۸

## سـلوك

اوس چې وینې ښه سلوك اوكمینې زما
غمازان كوي درګرده شیطانې زما
بیا ټاپې په ماوهې دتومتونو
چې یې ولیدله مینه انسانې زما
ماچې ځومره كړوې دمینې اورته
هومره تېنګه شوله دنده وجدانې زما
حادثې پې دزمان اغېزه نكړې
دپولادو غوندې هوډ دی افغانې زما
دوئ مې وژنې زه دعشق سندرې بولم
ګوره څه عجب انصاف دی میدانې زما
دغلیم دواړه غوږونه به كاڼه شي
كه یې واورېدله چیغه توپانې زما
څرخې زندان

# گــــوذر

الفت په ماپسې دی په گودرمې وروليې
دپــښغلـودمنگــيوپــه لنگرمــې وروليــې
دښکلوپه ټوليوکې مطلب ديارليدل وي
دمينې تــقاضاده بــرابـــرمـــې ورولـې
پلتن دښکلونجونودی مرچل داوبوغاړه
زړگـی مـې پاريدلی پـه سنگرمې ورولي
له سرسره سوداده دگودردغاړې مينه
تکل مې سوداگردی په خـطرمـې وروليې
وعده راسره نږدي دماښام په تروږمۍ کې
دوخت دغـه نېټه ده مازديگـرمې وروليې
که هرې خواته ځمه بله لاره راته نشته
قـسمت يـمه نـيولی پـه دلـبرمـې ورولې
يوازې چې ولاړه وي هم سخته ده ورتلنه
دمينې زورتـه گـوره پـه لښکرمې وروليې
لاسونه يې سره کړي دي د,,خيال،،دزړه په وينو
دعشق برخه خوړه ده په اخـتـرمـې وروليې

# گــیله

عشقه زه دې څرنګه له غمه په سلګو کړم
ګیردې پـه پـردیـوځـنځیرونـوزولـنوکړم
پرېږده که دې غابښې دملا راته رامات کړ
ښه شوچې خبردې ددښمن له دسیسوکړم
نیت مې دبهاردګلکځونودوړموو
ګـډدې دخـزان پـه زیـږه لاره داغـزوکړم
بڼ دنېکمرغۍ مې دې وېښلي په سېلیو
زه مـین بـلـبل دې دقــفس دپـنجـروکړم
شوق دې په شعرونوکې دخپلې ژبې راکړ
نظم مې زده نشوخومجنون دې دپښتوکړم
„خیال، ،دې غلیمانو ته تړلی په لاس ورکړ
اوس دې پخپل کلي کې ګنهلی دپردوکړم

دځرخي زندان ۱۳۶۴

# ارمـــان

چې دزلفوخوشبويي دې راغله ياره
روغ زړګی مې دې په چيغوباندې سرکړ
ستادمخ رڼاچـې وځـلېده ګرانې
ټـول وجـودمـې دې لـه خـاوروبـرابـرکړ

............

کـه زمـادزړه بنسټ دې خوځولی
سـتـادمـينې تـوپـانـونـه سرپـه سـردي
ګوندې پيل شي له سره دعشق لوبه
پـه لـېموکې دې ستونـه سـوداګـردي

............

هغه ښه نېټه به کله ياره راشي
چې راتاوکړې ترماسپينې لېښې غـبرګې
بيا به نه کوم ګيلې درته غمګينې
کـه مـې ولـيدلـې سـتاګلالی سـترګې

............

هسې رنګه به درګرزمه جانانه
لکـه مـارچې تـرسينځله راچاپـېرشي
ماته دومره مستي راکړه ستادمينې
چې داتـيـرغـمونه واړه له مـاهــېرشي

## نصــــیبه !

دکیشف زغرې دې وایستلې راغلې

دځـــژگي غـــشي دې ولـــونل رابـــانـدې

دلړم پـــه نیش دې وچیـــچـــلو واړه

دنباماردخولې خواږه دې رانه جوړکـړل

داسمان دې تندرونـــه کړل راکته

پـــه تـــوپـــان دسمندرکې دې لاهوکړو

سکاټ دې هم دشورویانوراباران کړل
پــه راکــټ دامـریـکا دې وویــشتلـو
ددوزخ په عذابونودې لګیاکړو
دجـنت پــه ټـېکـدارودې بـسیاکـړو
دجاهلوخوانصاف راته معلوم وو
عــــدالت دې دپــوهــانـوهم راوکوت
خپل پردي دې پرموږواړه حاکمان کړل
دســـړي اوسپي تـرټنې تـه ذې اړکـړو
دتمساح اوښکې دې هم راباندې توی کړې
دلـېوانـودښکارغـوښې دې کـړوبېرته
دسنګرپه قوماندان خودې سنګسارکړو
دمحبس په بندیوان دې هم پــه دارکړو
لادې زړه راباندې سوړنښونصیبه
نـورنـوڅه راڅخه غواړې په ناورین کې
اوس به خپل سرونه ونیسو په لاس کې
هـردښـمن تـه به موږکېنوپـه کمین کې

## نشــتــه

په لټون کې مې دهیلوغمی نشته

غــمازان پــه منځ کــې گــرزي بــری نشته

په گوگل کې مې دمینې انگاربل دی

دبېلــتون په اورســوځــېږم لـوگی نشته

بیا یې ولې ازمویې دوخت نادودې

پــه افــغان کــې دمــېړانې کـمی نشته

یوله بله یې پخپله که بېل نکړو

دآدم پــــه خــېلـخانــه کــې پــردی نشته

افغانان که هم دیووطن زامن دي

سره وژني پخپل منځ کې زړه سـوی نشته

ستا دظلم هیبت دومره په,,خیال،،پرېوت

چې پــه زړه کې یې لـه وېرې زگـروی نشته

کال ۱۳۶۴

## آرمان

یو،آرمان مې دی په زړه کې تل ترتله
چې دالـروبـرپښتون بـه یو شي کله
دوه توټې یې سره ووېشه پردیو
یـوافـغان لـه پېښوره تـرکـابـله
اوس لګیادي صیادان ددواړو خواوو
رانـه وژنـي دپښـتـوژبـه بـلـبله
بندپه بندیې کړو،ونډې ونډې اوربکو
مـوړلـه دي جاهیلو،وساتې خدایګله
دوطن دشهیدانومړه هډوکې
سـره وېشي زاهـدان ددین پـه تـله
دترکانومصطفی ورته په کاروو
چې سبق یې وای ورکـړی لـه اولـه
له پره دي،غلیمه څه ګیله ده،،خیاله،،
خپلې پښې دي پرېکوو یې موږ پخپله
روتردام ۱۹۹۸

## څلوريځه

که په مابانديږ دې راووست دومره ځور
خداى به تېرکاندي دتادځوانئ دور
بيابه غړدربانديږ وکړم نازولي
راشه وګـــوره دستړوزړونـــوغـــور
زندان

## پېغور

دصياددغشو زور چې پکې خپورشو
دګلبڼ دبلبلانوشورماشورشو
هرفريادد غچ شعارشودمستانو
په ساقي چې کوم يوجام دميوپورشو
دافغان دمڼو زورنه وونوڅه وو
چې حريف له تاجه تخته رانسکورشو
زمانه مې کړوي دويرلمبوته
ماته عشق دخپلوخلکوهسې اورشو
ملامت يې بې جهته زه ګڼلم
اوس خوښه شوچې پخپله يې مخ تورشو
خياله،،څه سپيره تندی لرې بې بخته
خپله توره خپل همت درته پېغورشو

زندان

## دامـــونه

کاشکې نه وای مین شوی په داهسې شان مجنون
یامې نه وای دزلودلی داغـروردیـوپښتون
دځپل کلي په کوڅوکې ناخبرله هرڅه ښه وم
خوچې نه مې وای لیدلې داپېچومې دژوندون
نه مې دوست رښتتنی ولیدنه ملگری بې مطلبه
نه باوردچا په قول نه وفا په کوم تړون
لاخونه دي موږ شکولې دزاړه ښکاري دامونه
چې دبل صیاد په لاس کې زولنې دي دپرون
هرتوپیان د،،خیال،،دژوندپه بهار راشي
ژوبـلوي دگـلوڅـانگې ورانـوي دباغ سمون
روتردام ۱۹۹۳

## بـــــېره

زړه مې هسې لټند لکه موج دسمندرشو
خيال مې لکه غـل دچادزلفولاندې ښوري
عزم بې صبري کوي دمينې سړېدوته
عقل دتــــدبـيرپـه نمت گرزي دورې دورې

...............

مينې چمتوکړې هم شراب اوهم کباب
شراب دي ستاپه شونډوکې کباب دی زمازړه
زړه دې په منگولوکې وړياراځخه يووړ
پرېږده چې اوس پورته کړم په سربانډې ترخه

...............

شنې پټې دې وتړلې نورې ترڅنگو
بـيادې کـړل راپـورتـه پـساتـونـه نابـبره
ډېردې مهارکړي دې دشوق په خيالي پېړې
سترگي دې کوډگرې نه دي څه شی دي دلبره

...............

څوپورې به زه اوس دساقي لېموته گورم
لاره دمـستانـوهـسې کـلـه وي بـې بـــېرې
تنده مې په زړه کې تلوسه لري خمارته
لوبې مستانې تـه مـې دپيل لارې خـــېرې
دځرخي زندان ۱۳۶۴

# زولنې ماتې شوې

سم چې په سنگرکې دافغان حوصلې ماتې شوې
ژردبهرنیودفرمان سلسلې ماتې شوې
توره چې له تیکې نه راووته دگرته
دېرې دتېریودپیمان فیصلې ماتې شوې
دکوخزانوته په چپاوکې چې راغلې وې
دلته په دې غروکې دشیطان قافلې ماتې شوې
زور دارادو،وو دبدمرغه میرنیو
ځکه په لاسوکې دزندان زولنې ماتې شوې
هومره دپردیو ژامې ماتې شولې,,خیاله،،
څومره چې دخلکودارمان ولولې ماتې شوې

روتردام

# پــرتـــــله

مالیدلې وې نجلی دهلسنکي
ښوی مخونه مړه وښتان يې طلايي
غنم رنګي تورې سپينې دکيوبا
پــه بـرلـين کې لـوڅې لېڅې جرمني
تنګې سترګې پيتې پزې دجاپان
نــرم نــرم انـــدامـــونــه مــرمــري
ښتنې په رنګ کې ښکلې له هرچادي
اوس چې تــورې تــورې وينم دګېني
لـه امــوتــراباسينه پـــورې خـپور
دويـــاړونــولــوی وطن دی افـغاني
ســادګي خــوتباهي ده په عمل کې
غـليمان مـــوپـه خـــوړوغـــلطوي
کـه هـمت وي د پتـکـيوپـــه تـړلــو
دګـېني ښـځې پـګړی پـــه سـرکوي
لاترڅوبه يو,,ويده دفيل په غوړکې،،
دغـه وخــت دی دتـدبيراوهـوښياري
زمــانــه ده دپـــېروونـوکچ کـولـو
,,خياله،،تـېرشـوهــغه دوردســوتې
افريقادګېني مرکزکوناکري۱۹۸۹

## چــــــېه

زرکه غرنۍ ده ګرزېدوته چې راځي
خوی دغـرڅنۍ لـري نـخروتــه چـې راځــي
زلفې يې تاوېږي دسهارنري شمال ته
لــبنــته ده دګــلــونڅــېدوتـــه چــې راځـــي
مايې چې دمخ رڼاليدلې په تيارو کې
ځــلــنده ډېــوه ده بــلــېدوتــه چــې راځي
چېرې چې مستي کوي په ګلواوشنېلو کې
رنــګ دښــاپــېرۍ لــري مــېلوتــه چــې راځي
کله چې غوټه شي درڼهواوبوپه ډنډکې
شــان دمــرغــاوۍ لــري لامــبو تــه چې راځي
ماته چې راوخاندي ګلونه په ګډاشي
خوله يې ګل غونچه شي غوړېدوته چې راځي
شوق دقربانۍ يې له پتنګه څخه زده کړ
،،خيال،،دخپل وطن دعشق لمبوته چې راځي
روتردام۱۹۹۸

## برخليك

که خبرشې دژوندون له هسې نرخه
دزمان دګرزېدوله هره شرخه
څوک دپېښوپه لړيوکې نسکورکړي
چاته تخت دهيوادونوکړي په برخه
که برى دکوم بې ننګ په لاس کې هم شي
خودويارا وبه يې نه رسي ترورخه
چې په زړه کې يې ترخې لړى خوځېږي
دتنورپه اورکې سوځي سپيره ترخه
دوږمو په خوشبويي کې چې خنديږي
دګلپاڼوسترګې مينځي رڼه پرخه

١٣٦٨

# بربښنا

ستادسروشونډوغونچه ده له موسکاسره عادته
دباغ سروې تړې شرمیږي ستاله قــده له قامــته
داوربښم دې دځنکوپلوشې دې چې ځلیږي
غوټۍ خاندي په شنېلوکې ستادحسن له شوکته
دا رنې رنې خولې دې مرغلرې دعطرونو
پـرخې پرخې رابښـویږي ستاپه سپینه خوله راکته
دابرېښنابربښنایرقاوې په هنداره دسپین مخ کې
تــوره شــپه رنــارنـاشي ســتادنــورلــه برکته
دا خماردزرکوسترګوپیمانې دمیوډکې
سـړی بـاسي پـه یـورپ کې دژوندون له حرکته
دانغمه نغمه زګروی دې په ټپي ټپي ځګرکې
دزمــان لــه بـدوپـښودتـقـدیـرلـه مـصیبته
ستادتوروتوروسترګو،دې هوسی هوسی کتوته
زړه مې مست خراب خراب شي دښکلاله محبته
داسرې سرې ګیلې دې دسلګیوسره وزي
چې دې ولې،،خیال،،ږټلی ســتادحـسن له نـعمته
هالند۱۹۹۸

## غمیزه

زړه مې درست له غرېوه ډك شوهرفریاد مې یوتوپان دی
غـمه هـررنګه ګوزاردې په مـــوړتندرداسمان دی
دیوموج دغوټې پای دی پل ګرداب ته ورډوبېږو
هــره شـخړه بـده سـتونـزه هـرلښکرموپرېشان دی
هریوجام دزهروغرپ دی هرساقي راته موزي شو
هـریرغل پـه مـوړغمیزه په هـرګوټ کې یوزندان دی

دغوتیوپه هرېن کې دګل ځانګه رژېدلي
هــــربلبل پـه چـیغوسـزدی هــربهارزموږخزان دی
هره پرښه تکه سره ده په هرګټ دوینورنګ دی
هــرمهال دراکـټ ډزدی هــرکنډودتــوپ نښان دی
هرګودردوینوډنډدی هریوخوږدجنګ سنګردی
هــرداسـتان پـه ویــرلړلی هــرشعارمـویـوطغیان دی
هره کونډه په ژړاده هریتیم مووېرځپلی
هــره خـونـه کـنډوالـه ده دهـرکلي وریـل وران دی
هرزلمی په زړه داغلی هره پېغله ده رنځوره
هرګرېوان دی،،خیاله، ،ځیرې هرزګروی دیوافغان دی

روټردم۱۹۹۸

# دریــــځ

که مې نکړله دې خاورې غلیم ورک
بــیامې وویلئ پــه شــل گزه تــوپک
که مې سردخپل وطن دښمن ته ټیټ کړ
مــاداورلــمــبوتــه واچــوئ چــتـمک
چې مې اړنه باسي بل دتورې وارته
زه افــغان یــمه دسولې پــه لارکلک
څوک چې قدردانسان دمقام نه کړي
تول یې گورئ د ،وړی په شانې سپک
ماته وروردی چې په دې خاوره کې اوسي
که پښتون که هزاره دی کــه تــاجک
چې په زړه کې یې غباردکرکې گرزي
ښه یې نشته که مزدوردی که ملك
،،خیال،،چې هرگوزاردسردپاسه وخوري
دمیړوي غوندې ټینگیږي یوپه لك
کابل۱۳۶۸

## چې رانشې

داشنادښکلاخياله چې رانشې
دهجران دشپې مشاله چې رانشې
زنکدن ته چې دانن راته رانغلې
جنازې ته مې سباله چې رانشې
بې زېوره پرته هم دښکلااورېې
په گانه باندې سمباله چې رانشې
رقيبان موپارېدلي دي ښوی مخې
بې حجابه بې دسماله چې رانشې
زما فکرخودتادښکلاکوردی
انځيرگله بې وصاله چې رانشې
چې توبې دپرهېزونوېې شي ماتې
دخيال ځنگ ته بې وباله چې رانشې

روترد۱۹۹۸

## صفت

ستادحسن اوښکلا له برکته
زمانه مينه تراسمانه ځي اوچته
که داهوډدپښتونوالي راسره وي
پرشتې به له سپوږمۍ نه کم راکته
پاريدلي زړه مې ژاړي په سينه کې
ستادسترګودښکلاله محبته
ښاپيرۍ دزمانې ګوته په غاښ ږدي
خياليګرې ستاله شانه له شوکته
,,خيال،،له هغه ډلې مه ګڼه جانانه
چې په مينه کې ويريږي له تومته
خيرخانه مېنه ۱۳۶۸

# نـذرانـه

چې په لاس کې دساقي پيمانه گورم
سمدلاسه مې ژوندون مستانه گورم

که راواړوي يوجام دتادشونډو
نوبه ځان له خيره چوردېوانه گورم

چې په مخ دې گډې وډې ځنې راشي
دگوگل خونه مې بيا ويرانه گورم

ستادتوروهوسي سترگوپه هررپ کې
دقارون دشتمنۍ خـــزانـه گـورم

چه ډېوه دې دسپين مخ کړه راته بله
روح دتـن زمـا ستي پـروانه گورم

اوس چې وخت دقربانۍ راغلی ښارته
د,,خيال،،سربه داگړی نذرانه گورم

## پسول

چې نصیب دصدقې کچکول راواخست
قرباني یې دافغان کهول راواخست
امتیازدنعمتونوچې خدای راوړ
معرفت یې دانسان پسول راواخست
چې یې برخې دازل په لاس وېښلې
پښتنوته یې نفاق سمبول راواخست
دزاهددجزاپېتې به لادروندوي
که فلك دګناهونوتول راواخست
په تندي به یې خوښي لیك شوې نه وي
چې یې خیال ته دغمونوشپول راواخست

امستردام

## دمیني قرباني

چې دمخ ښکلادې ولګوې اور
عاشقان له وېرې تښتي لورپه لور
زه غریب چې یودمیني قرباني یم
سرمې ګوره ستاپه مخکې سوی سکور
لازمادخوږې میني له بابته
غمازانودي جوړکړی شورماشور
سپوږمۍ ډوبه شي له شرمه په وریښ کې
چې دځنوشپول دې ویني په مخ خپور
چې دې یادزمادفکرکورته راشي
ستاغمونه په ماسل ځله شي نور
تږی،،خیال، ،که په وصال دتااوبه شي
غلیمان به شي سرکوزمخونه تور
۱۳۶۷

# وطنه

په ټټرزماکه وګرزي مېچنه
وابه نه وړم ستاله عشق څخه وطنه
چې هرڅه راته لرې پخپله غېږکې
ستاله ښکلې طبيعت څخه مننه
که دتادهيلوڅانګې زرغونېږي
ځان اومال مې درته واړه پېرزوينه
زماډډوته پسته ده ترورېښمو
که دې هرڅومره لمنه شي ازغنه
سره!تېت مه شه دستورداجنبي ته
که دې غوڅ کاندي په توره له بدنه
که جنت شي دپردي وطن باغونه
خيال به پرې نه ږدي دخپل هيوادلمنه
روتردام ۱۹۹۸،۶،۳۰

# الهام

قاصدخويې راغلی چې پيغام به ځنگه وي
دښارلـه ښناپېرى څـخه الـهام بـه څـنگه وي
هوکې دپيوستون ته يې شيبې په گوتوشمېرم
دوې سترگې مې څلورشوې چې انعام به څنگه وي
روغيرته خويه ورشم داشنادکلي خولې ته
کـه پـورتـه راتـه نـه گـوري سـلام بـه ځنگه وي

غمازیې دروازې په ځنځیرونو ورتړلې
دخونې لارې بندې شولې بام به ځنګه وي
غلیم ته خومهلت لادشپې لپاره نه وو
اوس کډې راتـه اړوي مدام به ځنګه وي
تېرې دبد مرغیو ړنګوي دخوښی ځلې
چې پیل یې غمیزه شوه انجام به ځنګه وي
زمادزړه مرغه خویې په غبرګولوموبندکړ
همدغه یې کـه زلفې وي نودام به ځنګه وي
دبخت ستوری مې ولوېده دمینې له اسمانه
چې ورځ مې هسې توره شوه ماښام به ځنګه وي
امیدمې له غوغا سره وربولې خاموشي ته
داشپورچې ککرې لري ارام به ځنګه وي
یوې لوېې مستانې ته مې دزړه هوس پارېږي
اشنادعشق لـه میوځـخه جام بـه ځنګه وي
جنون خویې منلی دی دمینې په خمارکې
د،،خیال،، دزړه لـه صبرسره پام بـه ځنګه وي
روتردام ۱۹۹۸

## مسبنوکه

چې دزلفودام دې وغوړاووماته
دبریوله کاروانه شومه پاته
دوصال دانه لرې ماورته پرېږده
چې مسبنوکه پې وهمه هرې خواته
دپتنګ په څېردې یوه خاشه ایره شم
خوچې وکړېږم ستادمخ رڼاته
ستادښوپه ماښام کې چې راښکېل یم
تلوسې مې هڅوي نوې سباته
زړه مې پرمخې راپرېوزي په ګوګل کې
چې راواړوې داتورې سترګې ماته
,,خیال،، په هوډملاتړلې مخ ته درومي
چې دمینې له سنګره نشي ...

# لوبې کړي

يارلکه ډېوه له خپل جماله سره لوبې کړي
ورانګې دښـکلايې لـه مشاله سـره لـوبې کړي

سترګې يې دميني پټ پټانی له ماغوړاي
شـونډې يې په پټه کې له شاله سره لوبې کړي

هرسهارچې درومي دګلونو تماشې ته
زلـفې يې پـهٔ باغ کې له شـماله سره لوبې کړي

مخ يې دسپوږمۍ دپلوشوسره سيالي کړي
ستورې داسمان يې چې له خاله سره لوبې کړي

چاته چې موږ لاس ورغزولی دياری دی
بـخت مـوپـه پاورکې له اغفاله سره لوبې کړي

پټ يې ترخرقې لاندې نيولی خم په لاس کې
وګــوره زاهــد تــه لـه وبـالـه سـره لـوبې کړي

وياړبه شي بری دعاشقۍ په ازمويښت کې
,,خيال،،په تصورکې له وصاله سره لوبې کړي

روتردام١٩٩٨

## زه به درشم

په گلونوبه بهارشي زه به درشم
دبلبلوبه چغارشي زه به درشم
داپه وینوخړوب شوی لاله زاربه
دوطن دغاړي هارشي زه به درشم
پسرلی به نوي نوي مستي راوړي
غوټۍ هیلې به گلزارشي زه به درشم

تل به نه وي دساقي دغه وېشونه
تېرې زړه به مې خمارشي زه به درشم
دچمن مړاوې غوټۍ به بيا موسکۍ شي
په وربل به دې کتارشي زه به درشم
پرښتې دورورولۍ به مينه ورکړي
پښتانه به په يوه لارشي زه به درشم
دا په مور راخورې شوې دغمونو
تورې لړې بـه مهارشي زه به درشم
دوطن پـه ولـسونـو بـه ظلمونه
پـېغـورونـه داغيارشي زه بـه درشم
لاس يې خپل په وينوسره په بل يې پاك کړي
دانـاولې بـه پـه دارشي زه بـه درشم
که راوسپړې د،،خيال،،دعشق دفترې
پـه اتـلوکې به شمارشي زه به درشم
دخرخې پله زندان۱۳۶۴

## وليکه

قلمه نوي فيصلې وليکه

له پرهېزونومې توبې وليکه

زمادهيلوله کچکوله سره

سخادميني دليلې وليکه

شبنم داوښکوېې دمخ په غولې

په سپوروږمې وليکه

دمادزړه دعشق له اوره څخه
پــه اسـوېلـینوکې لـمبې ولیکه
دآزادی دښکلې ناوې په نوم
دمـــــورسـرونـه نـذرانې ولیکه
چې سرې جنډې دشهیدانوستایې
پــه مـزارونـویې دېــوې ولیکه
زمور له غرونواوښارونوڅخه
ټـولې چـورشوې خزانې ولیکه
ورانې کوڅې دکلیوهېرې نکړې
په ښارکې رنگې ویرانې ولیکه
لــه ژړاګـانــوفــریـادونوسره
دویــردسـانـدوتـرانــې ولیکه
دزړه دزغـم دمـاتېدولپاره
,,خیال،،تـه دمیوپیمانې ولیکه

روتردام۱۹۹۸

## هـــيواد

خوږ،وطن په وينوپالوداموکلکې فيصلې دي
دازمـوږ سـپېره وگـړې اتـلان دزمـانې دي
ټولې پېښې دبريو واړه ماتې دپرديو
په دې گران افغانستان کې دوياړونوخاطرې دي
چې موږهوډدی کله کړی یا موزوردی ازمویلی
له دښـمن سـره پـه زړه کې لادوېرې زلزلې دي
که موپرېږدي داغمونه دپرديويرغلونه
دهـيوادپـه لويه غيږکې ښې رنگينې خزانې دي
,,خياله،،مينه موچې کړې ياموتوره چلولې
پـه هـرپـل پـه هـره لـوېشت کې دبريوافسانې دي

کابل ۱۳۶۸

## ساقي

ساقي راکړه يودمستوميوجام
چې داستړی زړه مې ونيسي ارام
که له دې وارې مې بياپه گوتوراشې
له نړدې به دې څارمه گام په گام
ستادسروشرابې سترگواغېزه وه
اوس چې گرزمه په مينه کې سرسام
دسپوږمۍ له پلوشونه هيله من يم
چې دې راوړي دخوږې مينې پيغام
ستادلاسه به زه چاته گيله وکړم
چې په،،خيال،،غريب دې ولې نشته پام

د استاد حمزه شینواري د غزل په اکتفا

## تـــغیر

دمینې په محفل کې رنګینې بدلې ښکاري
دچتې پــه ارواکــې ولــولــې بــدلــې ښکاري

چې سیل دګلونوته راوزي له مانې نه
لـه یـارسره پـه ځنګ کې بدرګې بدلې ښکاري

بربښنایې دغاښونوپه موسکاکې تته شوې
ښـایست یې مـجازي دی پـلوشې بدلې ښکاري

زګروی موټرفلکه پورې نه رسېږي پورته
زمــور پــه اســوپــلیوکې تــوبې بــدلې ښــکاري

دزغم پیاله مې ډکه شوه په تمه دوصال یې
دمــینې پــیوســتون تــه تـلـوسې بدلې ښکاري

له کومه چې زندان ته بندیوان پردی راغلی
د,,خیال،،په مــرونــدوکې زولنې بــدلې ښــکارې

دڅرخي پله زندان۱۳۶۴

## دژوندلاره

یووارکه دې ولیدله لاردژوندانه
پوه به شې زلمیه په اسراردژوندانه
ځان سمبالول خوسلیقه ده دنجلیو
دننده دمیړونوده سینګاردژوندانه
پېټې به په چاروکې دنورودا وړووي
څوک چې وي په علم کې بېماردژوندانه
پوهه یوه رڼاده دذلت په تروږمې کې
جهل دی انسان لره ښاماردژوندانه
عزم په پېچوموکې خوځښت دی دژوندیو
مړې به نوحه کړي انتظار دژوندانه
لاره به شي خلاصه داشناکلي ته,,خیاله،،
عشق که په سفرکې وي سالاردژوندانه
۱۹۹۸

## ننداره

ستر‌گې په محفل کې اشارې کوي د ښکلو
ځانته مې وربولې د توبو په ماتولو
غواړي په ستونوکې له مانه دزړه مينه
شوق لري په شوندوکې دکلکو ښکلولو
کله يې په مخ باندې دزلفو څپې راشي
کله خوشالي کوي دلرې په خندلو
هلته بوي دمشکو خوروي د ښکلو څنو
دلته په سينه کې زما زړه په مستېدلو
وايي هغه شوق چې ته لرې په ککرۍ کې
وښيه دې مستو ته دمينې په کولو
هوډ نشم نيولی اوس دعشق په ازموينت کې
کارپه دې ډګرکې دی دغبرګونځېدلو
خياله چې ترسره دوطن په غم کې ډوب يې
تېرشه په تصميم کې ددې لوبې دليدلو
مسکو ۱۹۸۹

# پــــوهـــــه

سپوږمی ته پورته کیږي دتخنیك په برکت
دژونـدبڼه بـدلـیږي دپـوهنې پـه حکمت
زمری که زوروودی خوتلکې ته گېدړشي
افـغان که مېړنی دی بې علمي يې ده ذلت
خوشحاَل چې توريالی وودوطن دعشق دلارې
هـنريـې دقـلـم شـودبـابـا دنــوم صفت
دوران دپېغلتوب خودبهاردگلوباغ وي
مـين لـکـه بـلـبل وايــي نـغـمې دمـحبت
که ستوري ښايسته دي دلاجوردوپه شنه پرښه
انـسـان لـره ښـکلاده دانـسـان سـره الفت
افسوس دموږ په حال دی چې دپاڼ په سرولاړيو
نه پوهـه,,خياله،،پـاتـه شوه نه هوډدحرکت

# خـــوب

چې هنداري ته ولاړه وه درخو
پـستې گـوتـې يـې وهـلې پـه بـڼو
غوټې خوله يې خنديده لکه خاټول
چې يې سترگې تـورولې پـه رنجو
مانيولې په نظركې وه له لرې
دې څـارلـم غـلى غـلى پـه لـېمو
بوى دمشكوېې له څنوخپريده
چې لگيا شوه دوربل پـه سمېدو
زه رنځوردمينې ورغلم كرار
په نمت دسپينې خولې دښكلېدو
مرغلرې دغاښو يې خنديدې
خـوښـكنځلم يـې دمينې پـه كتو
ماوېل پرېږده چې دې ښكل كړمه ليلا
گـوندې جـوړشمه دمينې په درو
په سوكه سوكه يې پرانيستله غېږ
لـكه گل دپـسرلي پـه غـوړېدو
سپينه خوله يې چې رابېرته كړه په غلا
پې راويښ شومه دمينې له خوبو

# دازل بختور

دحسن دمغرورله زوروروسره څه
دعشق دلـبونـيولـه خـنجـروسـره څـه
مجنون يمه پخپله ديارکلي ته ورځم
دميني دسرتـپرلـه سـوداگـروسـره څـه
دزړه تنده مې ماته شي دسترگوپه کتو يې
زمـايې دسـروشـونـډولـه شکروسـره څه
خالونه يې په ټنډه امېلونه دمرجانو
ديـاردسپيني خـولې لـه مـرغـلروسره څه
دمورډميړنوسره چې زوروهلی نشي
غـليم تـه پـه دې غروکې له ډغروسره څه
داوبش دنعمتونوخوفلك هسې راوړی
زمــوږيـې دازل لــه بــختـوروســره څـه
,,چې اوروورباندې بل وي نوهغه ځمکه سوځيږي،،
دگـېډې دمـــړويـې لــه نــهروسـره څه
حاصل خوپه نصيب کې تل دده په برخه شوی
دخان يې پـه تقسيم کې له بزگروسره څه
دسرخمارولوته دميني ساقي راووست
د,,خيال،،په ميخانه کې له دلبروسره څه

روتردام ۱۹۹۸

# جــوهــر

شیخ چې ولیدل خوندونه په باده کې
اوس جامـونه کړنگوي په میکده کې
ازمویلی چې جوهریې دبې پت وي
اعتبارورباندې څه کړې په وعده کې
په مکه کې به قسم درسره وخوري
ماتوي یې بې انصافه په سجده کې
دلیوانوترمنځ کله وینې څنبل شته
چې یــې ویــنودادم پــه اولاده کــې
مینې دي په پیچوموکې چې درومي
نـه خوب وړې دمـرمـروپه جاده کې
که تکیه لرې پخپلو متو،،خیاله،،
بریالی بـه وې دژونـد پـه آینده کې
روتردام۱۹۹۸

# ســلگی

نجلۍ چې نن هوس له گرزېدوسره واهه

هرېل يې په گلبڼ کې لـه نخروسره واهه

دحسن په غرورکې وه له ځانه نا خبره

شرنگی يې په هرگام کې له بنگړوسره واهه

مستي يې په کتلوکې نشې راپارولې

خمارېې پـه لېموکې له رنـجـوسره واهه

په نازوکریشموکې یې کتلی پورته نشو
پلویې په حیاکې له توبوسره واهه
چې سترګې یې له پیغلوسره غبرګې لګېدلې
سترګک یې ورته پټ له اشاروسره واهه
ناڅاپه یوامیردسنګرونوورته راغی
تهدیدیې دتوپک له کونداغوسره واهه
په غیږکې یې راټینګه کړه داښکلې بدنصیبه
وربوزیې دګل مخې له بارخوسره واهه
په چیغواوناروکې پیغلې ځان ورځخه بچ کړ
فریادیې په ژړاکې له سلګوسره واهه
پښېمانه شوه دژوندله خوشالیوځخه،،خیاله،،
ارمان یې دافسوس له ولولوسره واهه

روتردام۱۹۹۸

# حکمت

چې سمبال دې کړ، وربل په پېچ اوتاوکې
دعاشق زړگی دې يوور په شتاب کې

داگوزاردتادسترگودبنودی
چې دزړه زخم مې وينې په خوناب کې

معجزه به په کې څه گورې زاهده
دحکمت بېړی ده دروميې په درياب کې

دتوپان دغورځنگونو نظاره ده
کنه خپله څه شی نشته په حباب کې

چې تقدير، مودپردوپه گوتوکېوت
اوس به عمرتېروو په اضطراب کې

،،خيال، ،چې وسپاره خپل زړه دعشق څپوته
نوردې گرزي دغمونو په سېلاب کې

روتردام۱۹۹۸

# التفات

زه به دې دښکلې ځوانۍ ولیکم صفات
بیامې ستاپه مینه کې منلې مجازات
جوړې دې کړې یاره له کوډګروزلفولومې
بیابه دې درمات کړمه افسون دخرافات
قهردې وژلی شي خندا دې روغولی
دغه دي جانانه معجزې دکرامات
سترګې دې ښکلالړي نازونه دې کنځاوې
حسن اوادادې یوله بله منافات
یاره په اروا کې خودې برېښي دزړه مینه
سترګې دې نوولې خیال ته نکړې التفات
روتردام۱۹۹۸

## هــغـه

هغه مست وطن پرست زموږه وروڼه
هغه ښې په لمن پاکې ښکلې نـجونـه
هغه پولې کروندې اوورشوگانې
گـنـې ونـې چــمـنونــه اوگــلــونــه
هغه توري هوسى سترگې غوړې څنې
هــغـه ډك لـه خــوشـالـيواخـترونـه
هغه پټې ياراني دگودرونو
ښكـلـوپـيغـلـواوزلـميوتـه ودونـه

هغه مینه وررولی زمور دخلکو
هـغـه یـوبـل تـه بلنې اوسـتـونـه
هغه متې افغاني پښې منګولې
هـغه پـټې خـزانـې هـغـه لالـونـه
هغه برې برې ګټې کلکې پربښې
هغه جګې جګې څوکې درانه غرونه
هغه ښې سمې چینې رڼې اوبه یې
هـغـه مـست لـېوني بـهنده سیندونه
هغه تکې شنې درې ښکلې شنبلې یې
هـغـه غـرونـه ګـړنګونـه اوډاګونـه
هغه څرنده رمې دغرولمنې
دشـپـنوخـوږې شـپـېلـې اواتـڼونـه
هغه واړه اوس په وینورنګېدلي
هـلـته چـیغې دي ژړاوې اوغـمـونـه
ورانـوي یې دپـردیـوپـه بـاروتـو
اوروي پـې راکـټـونـه اوبـمـونـه
هلته چـوردغـلـېمانـولګېدلي
له هر لورې،،خیاله،،خبرې فریادونه
۱۹۸۹

# سرمشق

دژوندپه خوشاليوکې ملګری دپردوشي
رقيب پــه ګناهـونـوکـې پــېغـوردپښتنوشي
دپېښوګوزارونه له اسمانه چې راپرېوزي
تندی پــه دنياګۍ کې دافغان پــه مـاتــېدوشي
سکون دمايوسی که داقدام په توره مات شي
کـاروان دامــېدونـوهـغه دم پــه خـوځـېدوشي
موسم زمادفکرپسرلی شي په لټون کې
مـوسکايې چې دشونډودغوټۍ په غوړېدوشي
په توره به يې غوځ کړوچې سرمشق دامتحان شي
دبل پــه غلامــۍ کې چې زنګون پــه کږېدوشي
برېښنايې ترپالنګه رڼوي دمين لاره
سپوږمۍ دخـورلسم يې چې دمخ په ځلېدوشي
د,,خيال،،په پرديسي کې به خوښي له کومه راشي
چې اوښکې يې په غم کې مرغلرې دشعروشي

روتردام ١٩٩٨

## تــورتم

داځنګه تروږمۍ ده چې رڼا نه پېژني
تــورتــم دبېلتانــه دی لاسبانــه پــېژني
پېړۍ ديوويشتم راځي تسخيردکايناتو
انسان پـــه تـــمدن کې لاوفانـه پېژني
ايمان يې ددروغو په وېيلوخيرن شوی
واعظ په تېرايستلوکې رښتيانه پېژني
کلتوريې دکتاب د تفسيرونوغلط کړی
دژوند په نعمتونوکې ښکلانه پېژني
په ګونجودتندي کې يې دقهرنښانې دي
ظالم پـــه خـــورولـــوکې خندانــه پــېژني
د,,خيال،،تندی وهلوته جوړشوی له ازله
نــوځــکه يې غــمونــه انتها نه پېژني

هالند

د بنا غلي جهاني د بنکلي شعر هر کلي ته

خنجره بريښنوم دې پټومه خودې نه

سنګره ټينګوم دې،ورکومه خودې نه

د دار کړی ته راغلمه د عشق په امتحان کې

اجله لنډوم دې ځنډومه خودې نه

خيرات د پاچهي که وي د خاورې په بدل کې

کچکوله غوررزوم دې ګرزومه خودې نه

ساتنه د عزت دې که د سر په بيه هم وي

وطنه ژغوروم دې خرڅومه خودې نه

غليم په ځورولو کې د سر ټيټول غواړي

ورميره غوڅوم دې کوزومه خودې نه

دمشکوپه ورمو کې دې عطرونه راچلیږي
وربله ښکلوم دې ورانومه خودې نه
زما ږیره دې سپینه کړه په توروپنجرو کې
زندانه تېروم دې هېرومه خودې نه
په توره کې زمرې یې خودعلم برخه بله
پښتونه خبروم دې گرمومه خودې نه
گه نه لیکې غمیزې دپردیویرغلونو
قلمه ماتوم دې چلومه خودې نه
فلك چې سپېره کړې یې نوزه غریب دې څه کړم
نصیبه سوځوم دې خپلومه خودې نه
منزل دقافلې ته دهمت اوښان تیاردي
کاروانه خوځوم دې درومه خودې نه
چې ړنگې دې مانۍ کړلې زمادبخت دکلې
هجومه شنډوم دې قبلومه خودې نه
په توردعاشۍ مې یې په غاړه کې لوېدلی
ځنځیره شرنگوم دې پرېکومه خودې نه
مین دآزادۍ ته په پړاوکې غله ولاړدي
خیال جانه پوهوم دې پې شکومه خودې نه
روتردام ۱۹۹۸،۹،۵

# پــرون

دیدن ته ورغلی وم په غلا سره پرون
دګـلوښـانـګه راغـله لـه خندا سـره پرون

سپېڅلي فریادونه راسره ووډجذباتو
بلبل ومـه دمینې لـه غـوغـا سـره پرون

تصمیم مې په الفت کې ترمنزله راسره وو
وعـده یې راتـه راکـړه له وفـا سـره پرون

دښانګودوږمودخوربدوپه سباوون کې
دزړه‌خـوالـه مې وکـړه له اشناسره پرون

دپټورقیبانوله فتنونه خبرنه وم
شپـې دولـولـووې لــه ښـکلاسـره پرون

په لاروا وکوڅوکې غمازان په ما پسې وو
ښـارنـه یې کـوله،لـه مـدعـاسـره پرون

ولچکې زولنې یې وې نیولې دخیال پښوته
بېلتون ورته ولاړووله خطاسره پرون

روتردام۱۹۹۸

## بـــلوا

یاماته په لېموکې کرېشمې را یادوه
یـابېرتـه راپـخلاشه خـاطـرې را یادوه
د،نه څواب ته نلرمه تاب دزړه په تل کې
پـه ښکلوپیغامـونـوکې پـلمې رایادوه
یاپورته راولاړه شه دبام دسردپاسه
یـاگـرانې له گودرسره وعـدې رایـادوه

چې يوه شيبه مې وباسي له رنګې دنياګۍ نه
دشـونـډوله شـرابودې پيالې را يادوه
کلتور،زمادذوق درته راوستی يم ګلشنه
بلبل يـمه پـه څانګوکې نغمې رايادوه
چې سيمه دخوندونومې معطره شي په زړه کې
دزلـفوپـه څـپوکې دې وږمې رايادوه
ياکلي ته درځمه ستادحسن تروصاله
يـابيا راتـه پـه لاس کې زولنې رايادوه
مجنون درپسې ګرزمه په غرونواوبيديا
دخيرې ګـرېـوانـه سره غرمې رايادوه
ماسرپه لاس نيولی نذرانه دخپلې خاورې
دسرووينوله رنګ سره جنډې رايادوه
توکل يې پاروي بلې بلواته د،،خيال، ،صبر
دمينې پـه تلوارکې حـوصلې رايادوه
روتردام ۱۹۹۸

# ولـــجه

له کرښې چې راتېرشوغلیم ښکارمیندلی وو
دوخت لـه یـرغمل ســره یې تـارمیندلی وو
چې لټه دولجې یې وه نمت دخوځښتونو
لــه ډکــوخــزانــوســره یې ښــارمــیندلی وو
پیالې یې کړنګولې دبریو په سبا کې
پــه ځــاله دمچی کې یې اختیارمیندلی وو
درګرده نغارې یې غبرولې دخوښیو
اشنایې پــه ګانــه باندې سینګارمیندلی وو
داورسره یې لوبوته راودانګل لمبوته
دبخت په ازمویښت کې یې قمارمیندلی وو
دښکلوګلکځونودغوټیوپه تالاکې
دهـربوټې له څنګ ســره یې خـارمیندلی وو
پاځون دغورځنګونویې چې مخې ته راووت
دهـیلوپـه شـیشه کې یې غبارمیندلی وو
دهریوه افغان دزړه په ګرمو ولوکې
یـامـرګ یـاآزادي یې یـوشعارمیندلی وو
جنډې دشهیدانودویاړونورپېدلې
چې,,خیال،،پـه پنجروکې افتخارمیندلی وو

# ویـــــنې

داپورته چې په پرښوکې مرچل په وینورنګ دی
په کلیوکې دلاندې هرګودرپه وینورنګ دی
دزړه دوینوداري موچې لوړې فواري شوې
په لاس دغلیمانوکې خنجرپه ویـنورنګ دی
بلبل دآزادۍ مودصیادپه دام کې ولوېد
پــه تـوروپنجروکې یې وزرپــه وینورنګ دی
اورونه دمرمیوچې رااورې پې دپاسه
افغان پــه سنګرونوکې نهرپــه ویـنورنګ دی
انصاف دزمانې چې دملاپه ګوتوکېووت
دژونـدله بدمـرغیومواخترپــه ویـنورنګ دی
دزلفوپه عطرونوکې یې هم دوینوبوی دی
دمشکوله وږمـوسره عنبر پــه ویـنورنګ دی
دسترګودبڼویې چې وارونه په,,خیال،،وکړل
دزړه له پرهارونـویې تهرپــه ویــنورنګ دی
روتردام ۱۹۹۸

# ښاپېرۍ

راغــلې مــروره پــخــلاولاړه
ښکاره يې ديدن وکړپه غلاولاړه
ډېـــوه دمــحبت يې كـړله بله
دحـسـن ښـاپـېرۍ پـه نـڅاولاړه
يوه پرخه دګهيځ دګل دغېږې
دلــمردپــلوشــوپــه رڼـاولاړه
داوښکومرغلرې يې ډالۍ کړې
غـوټۍ دسباوون پــه خــنداولاړه
ناولي غمازان چې منځ ته راغلل
پــه يـارپسې دکـرکوبلواولاړه
سېلۍ دبېلتانه ورباندې ګرزې
دمـينې لـه درشـلـه وفــاولاړه
چې,,خيال،،ته دغمونوشوه رامخه
کــوتـره دالــفت پــه سزاولاړه
روتردام۱۹۹۸

## ښامار

نظرزماله ورایه په ګلزارولګېده
هرپل مې پــه ورتګ کې په انګارولګـېـده
ازغی دبدمرغۍ مې چې دزړه په غوټۍ راغی
خـاټـول دامــیدونــومې پــرهـارولګـېـده
زما دتن له وینوڅخه لیك دمینې نظم
دیـاردسـپینې غـاړې ســره هـارولګـېده

وصال دتوروسترگوچې هدف شودغوښتنې

ارمـان زمـادعـشق سره خـمار ولګېده

ادراك دغمازانوچې امسادبېلتانه شو

دمـينې پـه هـنداره کې غـبارولګېده

چې لاس موورته ورکړدباورپه تفاهم کې

هردوست موله مطلب سره اغيارولګېده

حريف ته دسرتاج دورکولوپه بدل کې

دمـوږپـه خزانـوبـانـدې ښامـارولګېده

چې پيل دغميزې ديرغل په بناوشو

دژښـولـه سـرونـونـه مـنارولـګېده

يوشوق مې دخوندونولټاووپخپل شعورکې

الفت ووپـه تندي بـانـدې شعارولګېده

ګلبڼ دآزادي يې خړوب کړی دی په وينو

افـغان تـه په وجدان کې افتخارولګېده

غوټۍ به يې په غاړه کې ګلونه شي دهيلو

موسم د,,خيال،،دمينې که بهارولګېده

امستردام

## اي دهیواد میني

مست دي کړم لېوال دي دښکلا کړمه مین دي کړم

لاردي رابدلـه کـړه خـواخـوږی دوطن دي کـړم

ځان دي رانه هېر کړپه جهان کې دي ورګډ کړمه

فـکردي راومینځـه جـذبـه دي کړم خوږمن دي کړم

کرښه دصرات دي راته وکیښه په څمکه کې

زه دي پـې ورتـود کـړمـه دحـوروار مـانجن دي کړم



زړه دې دزمري راکړ وزردې دشاهین په شان
تـوره دې رازده کـړه بـریالی دې کړم پتمن دې کـړم
باد ،ومه نسیم دې کړم وږمه دې دغوټیوکړم
بڼ دانـتـظاروم پـسرلـی دې کـړم گـلشن دې کـړم
غوښتل مې چې وشیندم عطرونه په شنېلیوکې
بـېـرتــه دې راتـم کـړمــه رڼـلی اودښـمن دې کړم
خپل مې دې پردي کړل غلیمانوته یې مخه شوه
ټول دې په ماراوستل پې چوردې کړم ویرجن دې کړم
مات دې کړم په لوبه کې غلگنوته دې پرکړمه
ویــنه دې را وچــه کـړه زبـېښلی کـورکـمن دې کړم
ورك دې کړم له کلي له کوڅې څخه دې وایستم
زه دې پـردېـسي کړمـه بې کــوره بې وطن دې کړم
,,خیال، ،ومه په غرونوکې مینځلی دگټ گل ومه
اې دهـیــوادمـینې گـــوره څـنگه لـــوغـړن دې کړم
روتردام

# پیوستون

که یې بیا په لراوبرکې پیوستون شي
تــوره شــپه د پښتنو بــه ســباوون شي
موږ چې څومره اړوو دوخت څرخونه
ســباتښتي نن مــوهــم بېــرته پرون شي
چې دښکلونازولوښارته راشي
نـرېې بولم په کابل کې چې پښتون شي
روڼ شبنم یم عشق راوړی دګل غېږته
خــودلمــر دپلــوشــوسره مې تلون شي
ډېر شکېدلې ګرېوانونه مینان وي
یــو،یــونیم یې ادم خان اویا مجنون شي
که یې کښت کړې په تدبیر دژوند په بڼ کې
دتقدیــربــوټی بــه ښکلی را زرغــون شي
دایې څه لېونی مینه ده په سرکې
,,خیال،، چې هره ښکلې وګوري مفتون شي

چې مې ولیده ستا ښکلې سپینه غاړه
دغه نیم زړه مې زرغون شو نیم مې شاړه
په نظرمه شه ځواني دې خیالیګرې
چې پــه ګــلوکې یې ګل غــونــدې ولاړه
چې دې پړک دمړوندنو شیشې وکړې
نــازنینې سپینې لــېځې خــودې ننغــاړه

ددې مات زړګي هردرزته مې ښوی مخې
ټيك پتری شي ستا دسپينې خولګۍ لاړه
ماددوئ په شانې سپك مه کړې خاونده
چې بــه خــاندې غليمان رابــانــدې واړه
دبريژنيف دخيال ټپوس چې ورته راغی
دافــغان دنيــمرغۍ کــوتــره ولاړه
دزاهد ،دسرشمله شوه چاته ټيټه !؟
خــپکۍ دشــورويـانوخـواوس ولاړه
دتقوا په نوم يې وويشته په غشو
دخــوشحال دامــيدخاله شــوه ويجاړه
په کم اصلو باندې څه باور په کار دی
دمــيچنې اوګــره هــرکله وي لواړه
که پخپلو کې يې هره دښمني وې
پــښتنوتــه ســره يــومــوټۍ شي واړه
که حاجت دې وې درملولره ,,خياله،،
دعــشق اوښــکې سيــدانې دې لـږژاړه
روټردام ١٩٩٨

# ارمان

یو،آرمان مې دی په زړه کې تل ترتله
چې دالـروبـرپښتون بـه یو شي کله
دوه ټوټې یې سره ووېشه پردیو
یـوافـغان لـه پیـښوره تـرکـابـله
اوس لګیادي صیادان ددواړو خواوو
رانــه وژنـې دپښــتوژبــه بــلبله
بندپه بندیې کړو،ونډې ونډې اورپکو
مـورلـه دې جاهیلو،وساتې خدایګله
دوطن دشهیدانومړه هډوکي
ســره وېشي زاهــدان ددین پـه تـله
دترکانومصطفی ورته په کاروو
چې سـبق یې وای ورکـړی لـه اولـه
له پره دي،غلیمه څه ګیله ده،،خیاله،،
خپلې پښې دې پرېکوو یې مور پخپله
روتردام ۱۹۹۸